زما او ستا په تصور کې ډېر تضاد دے
زه ګل بين يم ته ګل چين يې اے رقيبه.

# خوابنې اينګور

ناول

محمد ابراهيم خان شبنم

بسم الله الرحمن الرحیم

## کتاب پېژندنه


| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | :: خواښي اینګور |
| لیکوال | :: محمد ابراهیم خان شبنم |
| خپرندوی | :: دانش خپرندویه ټولنه |
| لومړی چاپ | :: ۱۹۷۳ م کال |
| لومړی کتابت | :: فضل الرحمن فیضان (مرحوم) |
| دویم چاپ | :: اکتوبر ۲۰۰۴ م کال |
| کمپوزر | :: ذبیح الله "شفق" |
| مرستیالان | :: ح.م عمرخیل او خلیل الله |
| شمېر | :: ۱۰۰۰ ټوکه |
| اهتمام | :: د پښتونخوا د پوهنې دېره ـ پېښور |
| بیه | :: ۱۵۰ روپۍ |

چاپ او کمپیوټر ځی

د دانش خپرندویې ټولنې تخنیکي څانګه قصه خوانی بازار، پېښور

Tel/Fax:2564513/E-mail:danish2k2000@yahoo.com

درکونه

- یونیورسټي بک ایجنسي، پېښور
- پښتو اکېډیمي بک شاپ، پېښور یونیورسټي
- دانش کتابتون، قصه خوانی بازار، پېښور



ې تصور د ځوانۍ راغے نو ارمــان مــې اوکړو
محسوس شوه چې د ښه عمر تاوان مې اوکړو.
"شبنم"

: کال ۱۹۷۳عکس چې کله دغه کتاب په وړمبي ځل چاپ شو

# اعتراف او مننه

زه د خپلو ادبی تخلیقاتو په چاپ او د پښتونخوا لر و بر ته په رسولو کښې د خينو ملګرو د زيار او کړاو د زړه د تل نه مننه کوم.

ښاغلے ډاکټر هدايت الله نعيم چې زما د افسانو د مجموعې "تغمې" د چاپ مرحلې ئې په يوازې ځان سرته ورسولې.

ښاغلے رحيم شاه رحيم چې د کلونو راسې ئې زما سره د خپلې مينې رشته ټينګه ساتلې ده او زما د ناول "اجړے" په چاپ کښې ئې پوره پوره مرسته کړې ده.

ښاغلے لايق زاده لايق چې زما د کتابونو په چاپ او د شعرونو په خورولو کښې ئې په پوره اخلاص خپل حق ادا کړے دے.

ښاغلے محمد حنيف قيس چې زما دشعري مجموعې "شبنم په ګلو" د کتابت او کره کتنې مرحلې ئې په خپله سرته ورسولې.

ښاغلے سعيد الله خادم چې زما کشر هم دے او زما د شعر و نثر په پاک خط کولو ئې په زوړ تندی لاس کړے دے.

ښاغلے حيدر علی دارمې وال چې د يو ښه آواز سره سره په خپله سينه کښې د پوره مينې او اخلاص نه ډک زړه لری دغه مينه. دغه اخلاص ده هر ځل زما په ادب پېرزو کړے دے او ددې ترڅنګه د ښاغلی اسدالله دانش ساپی هم يو جهان مننه چې زما د کتابونو په چاپ کښې ئې خصوصی دلچسپی څرګنده کړې ده

په مينه

**محمد ابراهيم خان شبنم**



چې دا ستا منګول مې لرې شوه د سر نه
کـه په عمر يم سپين ږيرے خو يتيم شوم

ترون:

د خپل پښتون او غيرتمند پلار خان عبدالحميد خان په نوم د چا
د صداقت، خوددارئې او علم دوستۍ اعتراف چې د هر دور
هرې طبقې په جار کړے دے.

هو! **خان عبدالحميد خان** څوک چې د خان حبيب خان (دارمئ خان) هاغه ننګيال زوے و، چا چې د وخت د هر طوفان په نره مقابله کړې وه. د خپل خاندان د هر غړی خدمت ئې کړے دے، د هغه په سينه کښې د رحم او مينې ډک زړه درزېدو. هغه په خپل دور کښې ډېره زياته علمی پوهه لرله. د فارسئ، عربئ ژبو په رموزو پوهه وو. د فقهې، تفسير او احاديثو ډېره لويه کتب خانه ئې لرله، کومه چې تراوسه خوندی او محفوظه ده. هغه په ادب منين و، د ټولو کلاسيکی شاعرانو تر څنګه ئې د علامه اقبال په شعر او فکر ډېره پوهه لرله.

د خپل مزاج ترمخه زما پښتون پلار تريخ و، ولې په دغه انداز کښې ئې د چا نه کرکه نه وه، چې چا به ورته د اخلاص لاس ورکړو نو بيا به ئې ورسره د همېشه دپاره پت پاللو. هغه د يوې ژبې خاوند و، په هر حال کښې به ئې سپينه او رښتيا خبره کوله.

زه دا منم چې د هغوی نه به څينې غلطياني هم شوی وی ځکه چې انسان مکمل نشی کېدے، خو د هغې وجه غالباً دا وه چې هغوی به اکثر فيصلې د خپلې مرضۍ مطابق کولې. د سوات دباچا صيب په مخالفت کښې چې هغوی د کورنۍ د نورو غړو سره دير ته شړونکی شول، نو يوه ورځ په پټه سوات ته راغلل. باچا صيب ته چې پته ولګېده نو ګرفتار ئې کړو. که هر څو ئې دا کوشش وکړو چې هغه به د باچا صيب نه د رحم

غوښتنه وکړی ولې خان عبدالحمید خان د سر تیتهول نه وو زده کړی.

د دوی په گرفتاری چې د سوات یو بل پخوانی باچا سید عبدالجبار شاه کوم خط دوی ته راستولی دے، د هغې نه ددې دروند پښتون د عظمت څرګندونه پخپله کیږی:

(نحمده و نصلی علی رسوله الکریم.

بخدمت اخوانم محبانم خان صاحب میاندم خان صاحب، بیدری خان و اشاړی خان و خوشحال خان لالا به سلامت باشید.

السلام علیکم!

از چند مدت شهزاده خان بطور سیر و تفریح این جا آمده بودند و مندرخانه خود اکثر موجد نه بودام. بعد در واپی از زبان خان بونیر شونیده شد که عبدالحمید خان به کدام کار و قرضداری خود یا کدام دیگر ضرورت در علاقه حکومت سوات آمده گرفتار شده است والله اعلم که نوبت بچه حال رسیده شده باشد.

بسیار تعجب است مثل شما مردمان عقلمند جان خود و اخوان خود بغیر از راضی نامه حکومته موجوده سوات در صورت مخالفت ادا نه کردن از عقلمندی بغیر و موجب نقصانات مزید در مزید است چه طور پسنده

گـواره کـرده ایـد. هـر دل هـر گـاه ازیـن قـدر در ملـک هـیچ
قسـم دسـت رسـن خـدمت و امـداد نـه دارم. البتـه بتکلیـف
دوسـتان خفگـی و بـر خوشـحالی دوسـتان خوشـدلی یـک امـر
طبیعـی و لازم اسـت. از رخ بسـیار دل تنـگ مـی باشـم و
غالباًبسـیار روزهـا گذشـته ایـن واقعـات شـده مگـر مـن در
خانه نـه بـودم و خبـر نیستم کـه تـا حـال چـه انجـام رسـید
خواهد بود. خدای تعـالی فضـل خـود کنـد همـان کنـد کـه در
آن خـیر و بهبـود دوسـتان باشـید و خـدای مـولی باشـد. بهـر
حـال از کیفیـت احـوالائی خـود گـاهی گـاهی اطـلاع دهـان
باشـید. اگرچـه هیچگونـه امـداد دسـت کسـی نـه دارمـو تـا
هم بـه خوشـی خوشـی و بـرغم غمگـین شـدم یـک امـر لازمـی
است. ازین حالات مذکوره هم مفصل اطلاع دهنده.

والسلام

دوست خیر خواه شما

سید عبدالجبار شاه

از سهتانه

یکم اکتوبر ۱۹۳۳)

* * *

**د خط پښتو ترجمه:**

اِنحمده و نصلی علی رسوله الکریم.

په خدمت خوږو ورونړو خان صاحب میانډم خان صاحب،
ببدري خان صاخب، اشاړی خان او خوشحال خان لالا روغ
اوسئ.

السلام علیکم!

څه ورځې اګاهو شهزاده خان د سېل و تفریح لپاره دلته راغلے وو. زه پخپل کور کښې اکثر موجود نه یم، نو په واپسی کښې د بونېر خان د خولې نه خبر شوم، چې عبدالحمید خان د یو کال لپاره د خپلې قرضداری یا د بل څه ضرورت د وجې نه د سوات دحکومت علاقې ته راغلے وو، چې اونېوے شو، والله اعلم، چې دغه حالات به څه نوبت ته رسېدلی وی. ډېره د حېرانتیا خبره ده. ستاسو په شان هوښیار او عقلمند کسان چې خپل خان هم او ورونړه هم بغېر د څه راضی نامې نه د موجوده حکومت سوات چې په دې حالت کښې ستاسو مخالف دے او ددې خیال یې ونه ساتلو. دا د هوښیارتیا خبره نه ده، بلکې دا د          زیات نقصان موجب جوړ شو. دا ځې په څه طریقه برداشت کړل. زړه مې غواړی چې زه ستاسو هر قسم خدمت وکړم، خو په دغه ملك کښې زه هېڅ قسمه مدد او امداد نه شم کولے. البته د دوستانو په تکلیف خفه کېدل او د دوستانو په خوشحالی خوشحالېدل یو فطری کار دے. په دې کار ډېر خفه یم. غالباً ددې خبرې ډېرې ورځې وشوې خو زه پخپل کور کښې اکثر نه یم نو خبر شوے نه یم او ماته پته لګېدلې نه ده چې اوس حالات کوم خانے ته رسېدلی دی. الله تعالی دې خپل فضل وکړی چې دوستان په خېر و عافیت سره

وي. د الله اختيار دے، بهر حال د خپل حالاتو نه كله ناكله ما
خبروئ اګرچې زه هيڅ قسمه مدد نه شم كولے. بيا هم ستاسو
په خوشحالئ خوشحالېدل او په غم خفه كېدل يو فطري امر
دے د لپاسني مذكوره حالاتو نه ما مفصل خبر كړئ.

والسلام
اولنے اكتوبر كال ۱۹۳۳ع
ستاسو خېرخواه دوست
سيد عبدالجبار شاه
از سهتانه]

* * *

خان عبدالحميد خان تول ژوند په ډېر رعب او وياړ تېر
كړو. دهغوى دوستى هم په ډاګه وه او دښمنى هم په ډاګه. په
خپلو به خفه كېدو او د دښمنانو سره به ئې دښمنى ښه په جار
كوله.

هغه يو ننګيال پښتون او سوچه مسلمان و بيخى د علامه
اقبال ددغه شعر يو ژوندے ثبوت چې:

قهاري و غفاري و قدوسي و جبروت
يه چار عناصر هو تو بنتا هے مسلمان.

محمد ابراهيم شبنم، اشاړے
۲ اكتوبر ۲۰۰۴

# پیژندګلو

اکثر داسې کېږي چې څوك اديب يا شاعر خپل څه نوې ليکلې شوې کتاب پښتو اکېډيمۍ ته ماله راوړي، اول خو نې دا خيال وي چې پښتو اکېډيمۍ به ئې واخلي يا به ئې تر چاپه ورسوي. د اکېډيمۍ مالي حالت کم نه کم زما دډاېرکتېر په حيثيت راتلو نه پس دې حالت ته رارسېدلے دے، چې مونږ خپل چاپ کېدونکي کتابونه هم د چاپ کولو جوګه نه يو، نو ځکه ورته په خبرو خبرو کښې په يوه ښه طريقه د اکېډيمۍ د طرفه د چاپ په حقله خپل حال څرګند کړم او معذرت وکړم. بيا دغه شاعر يا اديب چې دغه کتاب (ناول، افسانې يا کلام وغيره) په خپله د چاپ کولو په حقله رائې وغواړي، نو زه په دوو کښې حېران شم چې ده ته څه ووايم، که وايم چاپ ئې کړه او دے ئې چاپ کړي او بيا دومره پيسو لګولو نه پس دده د توقعاتو خلاف دوه څلور کتابونه هم خرڅ نه شي نو دے به په دغه وخت کښې مانه ضرور ګېله من شي، چې درسته رائې مې ورله نه وه ورکړې.ښکاره ده چې ګرم به هم يم ورته. او که نه ورته ووايم، چې د پښتو دا کتاب دې مه چاپ کوه نو دا مې خولې له نه راځي. زه د پښتو د يو خادم په حيثيت چاته څه وئيلے شم چې د پښتو دا خدمت به درته سعي نا مشکور ثابت شي.

نن زه تاسو ته د سوات د يو زلمي اديب ښاغلي محمد ابراهيم خان شبنم يو ناول وړاندې کوم، چې هغه د پښتو د

خدمت دپاره په خپله تر چاپه رسولے دے. په دې ناول کښې د پښتو ژبې خو څه چې د پښتنو يو اهم ضرورت ئې سرته رسولے دے.

ادب په معاشره کښې د اصلاح په لړ کښې يو ډېر اهم کردار ادا کولے شي. بلکې په دنيا کښې هر چرته چې په لويه پيمانه څه اصلاح، څه بدلون، يا انقلاب راغلے دے، نو که په غور وګورو نو د هغې سبب يوازې هغه وقتي ليډران نه دي څوك چې د انقلاب چغه راپورته کړي، بلکې ددې شاته د چا لوئے اديب شاعر قلم کار کړے وي او دغې لوئے اصلاح او انقلاب ته ئې زمکه هواره کړې وي.

زمونږ په معاشره کښې هم ډېرې خرابئ، رواجونه او رسمونه دي، چې زمونږ قام ته ئې ډېر غټ نقصان رسولے دے، ددې د اصلاح ضرورت دے او دا اصلاح په ممبر د وعظونو کار نه دے. دا د شاعر اديب قلم سرته رسولے شي او که زه ووايم چې زمونږ اديبان او شاعران د خپل دې فرض نه ناخبره نه دي او هغوی د مودو مودو راهيسې د خپل فرضو په ادا کولو کښې څه کمے نه دے کړے، خو لا اوس هم ډېر کار پاتې دے. زمونږ په ادب کښې د نظمونو، افسانو او ناولونو يو شمېر کتابونه تر چاپه رسيدلي دي او د تېرو شلو دېرشو کالو راهيسې د پښتو ادبي پنګه بنه زياته شوې ده، خو دا پنګه اوس هم دومره نه ده چې مونږ پرې څه فخر وکړے شو، ځکه چې مونږ لا په سير کښې پونړئ هم نه ده ورېشلې او مونږ ته ډېر مزل پاتې دے.

په دې سلسله کښې زه تاسو ته دا يو نوے ناول وړاندې کوم. هسې خو د ناول ډېر قسمونه کېدے شي خو مونږ ته

زیات ضرورت د اصلاحي ناول دے. خکه چې زمونږ په معاشره کښې چې کومې خرابۍ، غلط رواجونه چې د مودو مودو راهیسې راننوتے دی او لکه د ناسور نې جرړې کړی دی ددې ګنده ننګو د اصلاح یا خبرلو دپاره د ادب د اصلاحی نشتر ضرورت دے. دا ناول هم خاص طور سره په دې غرض لیکل شوے دےاو زمونږ د کورنی ژوند ځینې عامې خرابۍ پکښې په ډېره ښکلې طریقه په کړی شوی دی.

دا ناول چې په اول خل ماله د کتنې او رائې دپاره راکړے شو نو اول خو لکه چې ما قیصه تېره کړه چې دې لیکوال ته څه ووایم په دوه کښې حېران وم، خو څه ورځې پس چې مې ددغه ناول دوه بابونه وکتل، نو بې شانه ډېر مې خوښ شو او د چاپ په حقله مې ورته دغه قیصه تېره کړه، چې ما ددې کرښو په سر کښې ورته اشاره کړې ده، چې که د ګټې خیال نه ساتے نو ناول ډېر ښکلے دےاو د چاپ وړ دے.

لیکونکے د خدائے فضل دے ښه شته من زلمے دے د ګټې خیال نې شاته وغورزاوه او محض د پښتو د خدمت دپاره نې د چاپ کولو نیت ځرګند کړ.

ښاغلے شبنم یو بل ناول او د افسانو مجموعه هم لری، چې تقریباً په ټولو کښې نې د معاشرې داسې خرابۍ په ګوته کړی دی، چې هغه د معاشرې د اصلاح دپاره ډېرې ضروری دی. خدائے دې وکړی چې هغه هم زر تر زره چاپ شی.

**سید خیال بخاری**

ډایریکټر پښتو اکیډیمۍ، پېښور یونیورستی
کال ۱۹۷۳

# خوابنې اینګور

په پښتو ادب کښې چې کله د ناول ذکر راشي نو ورسره سمدستي په دې صنف کښې د کموت او نیشتوالي خبره هم وشي. ناول په پښتو کښې په نهشت برابر دے. په باوجود ددې چې قیصه د پښتنو ډېره خوښه ده، د دوی ټول ژوند او ټول وطن پخپله قیصه قیصه دے، خو بیا هم په ادب کښې یې ناول هغه هومره وده نه ده موندلې څومره چې پکار وه. په پښتو کښې د ګوتو د شمار په څو ناولونو کښې بیا هم سېوا د څلورو شپږو ناولونو نه چې هغه۸ د خپل اعلی فني ساخت او مقصدیت په سبب مقبولیت موندلے دے. نور دومره نایاب او د خلقو نه هیر دي چې چاته به یې نومونه قدرې هم شاید چې په مشکله سره یاد وي.

خوابنې اینګور د ابراهیم خان شبنم صاحب یو اصلاحي ناول دے کوم چې د خپل پرکششه نوم او دلچسپې قیصې په برکت لاتراوسه پورې په ذهنونو کښې تازه پروت دے او په

پښتـو ادب کښـې ورتـه د قبولیـت شـرف حاصـل دے. دا نـاول پـه ورمبـى خـل پـه کـال ۱۹۷۳ کښـې چـاپ شـوےو او د خـپلې خوږې ژبې او خوږو خوږو مکالمو په سبب تر یوې مودې پورې په ایم اے پښتـو کـورس کښـې هـم شـامل پـاتې شـوے دے. پـه دې کتـاب کښـې د پښتـو محـاورې او الفـاظ پـه دومـره سـوچه خـوږه ژبـه او نیچـرل انـداز کښـې بیـان شـوى دى چـې هغـې ددې پـه مقبولیـت او شـهرت کښـې یـوه زبردسـته اضـافه کـړې ده. د عوامـو سـره د عوامـو پـه ژبـه کښـې خبـرې کـول غـټ فـن او یـو ځانله هنر دے. کوم لیکوال چې په دې هنر پوهه وى د هغوى د لیك د کامیابۍ ضمانت پخپله د هغوى دغه هنر وى.

د خـوانبې اینګـور د لیکلـو مرکـزى خیـال د غلطـو رواجونـو، د جهالـت د رسـمونو، د خانـدانى جګـړو او د پښتنـو د بـې سـوچه عمـل خـلاف یـو جهـاد دے. ددې قیصـه زمونـږ د معاشـرې د عـامو حـالاتو یـوه هینـداره ده، چـې پکښـې د پښتنـو د رواجـى ژونـد عکـس صـفا ښکـارى. ددې قسـمه غلطـو رواجونـو او خانـدانى جګـړو د لاسـه ډیـر کرتـه پـه حقیقـت کښـې داسـې شـوى دى چـې د پـوره پـوره کورونـو سـره مکمـل خاندانونـه او قبیلې تبـاه شـوى دى. پښتانـه عمـل مخکښـې کـوى او سـوچ وروسـته او د سـوچ وخت چې راځـى نـو غلـط عمـل هرڅـه تبـاه کـړى وى چـې وروستو یې بیا هیڅ تلافى نه کیږى.

زمونـږ پـه اولسـى ژونـد کښـې خـوانبې اینګـور د یـو کـور یـا خانـدان دوه داسـې کردارونـه دى چـې د کـور یـا خانـدان د بقـا ټـول انحصـار د هغـوى پـه عمـل وى. د خـوانبې اینګـور مسـئله تقریبـاً د دنیـا هغـه اقوامـو او معاشـرو چـې پـه هغـوى کښـې د مشـترکه خانـدانى ژونـد تېرولـو رواج لاموجـود دےټولـو تـه یـو شـان

وريښنه ده. بيا په تېره تېره د پښتنو معاشرتي ژوند چې ټول په مشترکه خانداني نظام آباد دے ډېر په شدت سره پکښې د خوانښې اينګور د باهمي کشمکش مسئله موجوده ده. په پښتنه معاشره کښې د خانداني ژوند وېش څه په دې ډول دے چې په هغې کښې يو کور وي، په کور کښې مور و پلار خوېندې ورونړه، اينګور ورانې او بچي شامل وي. دا ټول سره يو ځاى اوسېږي او د يوځاى اوسېدو سره بې شماره مسئلې راپيدا کېږي، چې په نتيجه کښې ترې د خوانښې اينګور د جنګ جګړو او معاريزو مسئله راولاړېږي.

په دې کتاب کښې د خوانښې اينګور جګړه مقابلتاً د عام معاشرتي ژوند د سطح نه لږ په زياته مبالغې او غير انساني سلوك سره پېش کړې شوې ده. د بربادۍ ټول قصور په خوانښې عائد کړې شوے دے. مصنف دا ښکاره ثابتوي چې د يوې کم عقلې سرتېزې خوانښې د لاسه يو باعزته د خان لويه کورنۍ د تباهۍ په سين لاهو شي، ليکن ددې مقصد په حقيقت کښې دا دے چې مصنف ددې مسئلې په اهميت رڼا غورخول او هغه په شدت سره ښکاره کول غواړي. اګرچې په ډېرو کورونو کښې به دا مسئله ددې کتاب د پېش کړې شوي تصوير يا قيصې نه هم زياته په بې رحمۍ سره موجود وي، چې په نتيجه کښې يې قتل و غارت او د خاندانونو بربادي او تباهي په نظر راځي او مونږ نې وخت په وخت په خپل روزمره ژوند کښې په اخبارونو او خبرونو کښې ګورو اورو خو بيا هم ددې د اهميت او حقيقت نه انکار نه شي کېدې. هسې هم پخوانۍ خوانښيانې ډېرې زورورې وې چې مثالونه يې لا اوس هم د نن په ترقيافته دور کښې لا زمونږ په معاشره کښې موجود دي. په دې بنياد شبنم

صاحب چې څه لیکلي دي هغه د حقیقت نه څه بغیر خبرې نه دي.

د پښتنو خېنې د جهالت د دور رسومات داسې دي چې هغه د خپلې انتهاپسندۍ په سبب د انسانیت د دایرې نه هم بره ګڼلے شي. د مثال په طور په پخوانو وختونو کښې په پښتنو کښې د میراثي کولو دستور داسې و چې مثال به ئې ګورې که د نرۍ د وحشي قبائلو په قانون یا عاداتو کښې چرته موندے شي. دا د دشمن یا تربور نه د بدل اخیستو یو بدترین مثال وو. دغه شان د سورې په رسم کښې د جینۍ دپاره د خاوند کور د جهنم نه څه کم نه وي. په دې طریقه د شبنم صاحب د لیک غرض هم دا دے چې پښتانه د خپلو غلطو رواجونو او عادتونو په سبب انتهاپسند دي. کوم چې دوی په حیثیت د یو قام د تباهۍ سره مخامخ کړي دي او د ترقۍ لارې ئې ورته بندې کړې دي. د خوابښې اینګور قیصه هم ددغه نوعیت د انتهاپسندۍ یوه نمونه ده. زمونږ د پښتنې معاشرې د کورونو حالاتو په عام ژوند کښې چې د ښځو په مینځ کښې د ضد، حسد، بغض کینې او عناد، لمسون، د کور ورانولو، د جنګ جګړو او د شر فساد کوم کردار دے، د هغې یوه ډېره ښکلې نقشه په دې کتاب کښې راښکودې شوې ده.

د خوابښې اینګور مسئله نن هم زمونږ په معاشرتي ژوند کښې موجوده ده. زمونږ قبیلوی نظام داسې جوړ دے. چې په دې کښې د خوابښې اینګور مسئله د راروانې یوې صدۍ پورې لا نه شي ختمېدې. د دې مسئلې د لاسه که نن ډېر کورونه په لړزان دي نو دا هم یو حقیقت دے چې دنن نه اتیا سل کاله اګاهو د "پښتو" په دور کښې لکه څرنګه چې په دې ناول کښې

بیان شوی دی د پښتنو ددې قسمه غلطو عادتونو په سبب د ډېرو خاندانونو تبه کېدل یوه عامه خبره وه. اګرچې ددې کتاب ځینې کردارونه او واقعات د خپل ماحول او خپلو روایاتو د حقیقت د پاتلې نه انحراف هم کوی. د مثال په طور د خوابنې اینګور په جګړه کښې د ماشومې تسنیم د مرګ پېښه یوه داسې خبره ده چې زمونږ په معاشره کښې داسې چرته هم نه کېږی، چې د مرګ په موقعه څوك خپل کورنی اختلاف یوې ډډې ته نه کړی او په کور دننه د یوې ماشومې په مرګ خلق خان ناغرضه کړی. دغه شان ځینې نور واقعات هم د حقیقت سره سمون نه خوری.

د خوابنې اینګور د شر فساد، د ښځو د ضد بازۍ او جنګ جګړو نه علاوه په دې ناول کښې د جابره خانانو د ظلم جبر، د هغوی د فضول خرچۍ او عیاشۍ او د خپلې نادانۍ په سبب د پلار نیکه په جائیدادونو د اوریورې کولو پحقله ډېر په ښه انداز سره رڼا غورځولې شوې ده. خانزم د پښتنو د معاشرې یو اهم جز دے. ټوله پښتنه معاشره د خانانو او ملکانو په بند تړلې شوې ده. د جابرو خانانو کردار زمونږ په معاشره کښې یو ښکاره عمل دے چې ورسره بې شمېره واقعات او قیصې تړلی شوی دی. په خوابنې اینګور کښې د داسې قسمه روایتی خانانو د ذهنیت او د هغوی د خرابو خویونو او عادتونو خلاف زبردسته عکاسی شوې ده.

د خپل فنی ساخت او د ناول د اجزائے ترکیبی په لحاظ سره په خوابنې اینګور کښې څو کمزوری پاتې شوی دی. په دې کمزورو کښې یوه اهمه دا ده، چې په ځینې ځایونو کښې د ناول مکالمې د پلاټونو سره غلط شوی دی. د پلاټ او مکالمو

ترمېنځه يو واضحه تفاوت پکار دے. که چېرې داسې ونکړې شي، نو هغه د يو ناول فني ښکلا ته ډېر نقصان رسوی. په خوابني اينګور کښې ځای په ځای ددې خبرې خيال نه دے ساتلے شوے. په روانه مکالمه کښې پلاټ او د پلاټ په مينځ مينځ کښې مکالمه شروع شي، کوم چې په لوستونکی ډېر بد اثر غورځوی او د ناول حسن او معيار ته نې تر ډېره حده نقصان رسولے دے.

ددې هرڅه باوجود کوم څيز چې ددې ناول حسن او ښکلا ته شهرت وربخښلے دے، هغه ددې انداز بيان او د محمد ابراهيم خان شبنم صاحب د قلم تاثير دے. شبنم صيب په روانه خوږه او بامحاوره ساده پښتو کښې دا کتاب دومره په لطافت او حلاوت سره ليکلے دے، چې د هغې د يو يو لفظ او د يوې يوې جملې نه خوږوالے څاڅي. په دې کښې چې د يوې باندېځې ژبې په لهجه کښې اظهار په کومه بې ساختګۍ او سادګۍ سره شوے دے. د هغې نظير په ډېرو کمو کتابونو کښې موندے شي. د کتاب د لوستو په وخت هر پښتون داسې محسوسوی لکه چې دا د هغه د خپل کور کلی او محلت يوه قيصه روانه وی او ديو اديب يا ليکوال دپاره ددې نه بل غټ اعزاز څه کېدے شي چې د هغه د قلم نه راوتې خبرې هر سړے د خپل زړه يو آواز وګڼي.

رحيم شاه رحيم
مينګوره، سوات
۱۶ ستمبر ۲۰۰۴

# ژوندی کردارونه

ماته ښه یاد دی چې زه کله په سکول کښې وم نو د خپل د ماما د زوی ښاغلی شیر بهادر خان نه به مې د "خوابښې اینګور" تذکرې اورېدې. ښاغلے شیر بهادر خان چې نن سبا په بټګرام کښې د ډی سی او په حیثیت کار کوی په هاغه ورځو کښې هم په پښتو ادب مئین وو او ددې سره سره ئې د شبنم صیب د کورنۍ سره نزدې اړیکے لرلے. زه ماشوم وم خو په فکر کښې مې ناقراری وه. د ماما د زوی کتابونه به مې پټ پټ کورته یوړل او د خپلې پوهې مطابق به مې د هغې د لوستو کوشش کولو. "خوابښې اینګور" مې په هاغه دور کښې ولوستو. ددې ناول کردارونه به مې په کچه ذهن کښې الول کېدل. بیا وخت په ورانده لاړو. زه د وختونو په بهیر کښې د کالج او یونیورسټۍ نه پس ریډیو پاکستان ته راورسېدم. او چې خواوشا وویشت کاله پس مې ددغه کردارونو د لوستو یوه موقع بیا ترلاسه کړه، نو داسې مې محسوسه کړه لکه زما د کچه ذهن کچه کچه کردارونه زما په چاپېرچل کښې رازلمی شوی وی. د شبنم صیب ددې ناول ژبه ډېره سوچه او ژوند ته نزدې ده. دغه ټول کردارونه مونږ په پښتنه ټولنه کښې هر چرته

وینو که هرڅو د ژوند تقاضې بدلې شوې دي خو د "خوابښي اینګور" ترمینځه د نفرت دېوالونه اوس هم په خپل ځاې ولاړ دي.

شبنم صیب په ډېر هنر د پښتني معاشرې زنانه کردارونو ته ژبه ورکړې ده او بیا د شروع نه واخله تر اخره پورې د خپل لوستونکی په نبضونو داسې ګوتې ږدي، چې بیا هغه ته د وخت احساس نه کېږي. دغه ژوندي کردارونه د ځان سره کله خپل لوستونکي ژړوي، کله ئې غصه کوي او کله ئې د ژوند نه ویزاره کوي. په دغه کیفیاتو کښې لوستونکي مجبوره وي چې تر اخره پورې ناول وګوري.

په دغه کردارونو کښې به ډېرو خلقو ته خپل مخونه ښکاري دا ځکه چې ددې ناول په شا یو اصلاحي جذبه پټه ده.

زه باور لرم چې د "خوابښي اینګور" دا دوباره چاپ به د پښتو ادب په لوستونکو کښې نوره هم اضافه وکړي.

په درناوی

لایق زاده لایق

پېښور راډیو، ستمبر ۲۰۰۴

# د فیضان تاثر

بناغلے محمد ابراهیم شبنم صاحب یوسف زے آشارِوی برسواتی چې دا خپل کتاب "خوابښې، اینګور" د چاپ کولو په غرض د کتابت دپاره ماته حواله کړ، نو د کتابت د شروع نه وړاندې مې په زړه کښې هسې راغله چې شبنم صاحب به څه هسې پانړې توري کړې وی. د خپل نوم ناموس دپاره به دا کتاب هسې بې خایه چاپ کوی. لیکن کوم وخت چې ما ددې په کتابت شروع اوکړه او یو څو مخونه مې ولیکل، نو ددې پرکشش لیکلو ماله دومره مزه راکړه، که هر څو کتابت مې وکه، لیکن ماته به څه ستومانی نه محسوس کېده او په یوه نشه کښې به په لیکلو لګیا وم.

زما خاص یقین دے چې که کوم یو لوستونکے صاحب دا کتاب شروع کړی. نو بغیر د خلاصولو نه ب ئې هېڅکله هم پرې نه ږدی او د مصنف په حق کښې به بلا تحاشا د تحسین او شاباشی الفاظ استعمال کړی.

فیضان، سوات

کال ۱۹۷۲

# رواج

د سحر وخت دے، مجلس ګرم دے د کلي ملکان په حجره کښې ناست دي او چاي وښلې کېږي. دوو خانانو بالښتونو ته ډډې وهلې دي. نانۍ په حجره کښې ګرم ګرم ګرځي. يوځائے ته منډه کله بل ځائے ته هلکه! بېګاه مې څو بستونه سم کړي وو يوه تولاتي خو پکښې نشته د نانی انځر سره خپل زوی کوثر هم دے.

انځر: کوثره بچيه! څومره بستونه دې بېګا سم کړي وو.؟

کوثر: دادا ما کله سم کړي وو. بستونو له خو ته راغلے وے.

انځر: او او راپه ياد شو. خو چې ما څو بستونه سم کړي وو هغه؟

کوثر: يره دادا چې که خدائي مې نه غلطوي نو تا پنځه بستونه سم کړي وو.

انخر: غل خوره! غل خوري، چې ما پښخه سم کړی و نو
هغه يو بالبنت او يوه تولانی څه شول؟
کوثر: زه ترې څه خبر يم دادا کار ته وکړې او قارېږي ماته.
انخر: هلکه! وړوکے نې بې خايه ترېږه مه. سحر دې لاچای
مي هم نه دی څکلی. هسې نه چې يو څو ډبونه درنه پورته کړم.
کوثر: سامان ستانه ورك شه او ډبونه ماله راکوې ما څه
گناه کړي ده.؟
انخر: زر کور ته ورشه، د مور نه دې تپوس وکړه.
کوثر: دادا زما مور څه خبر ده.
(اشرف خان چې د حجرې مشر خان دے او اصغر خان دده
کشر ورور دے دواړه په تماشه د انخر او کوثر خبرو ته ناست
دی)
اشرف: هلکه انخره! دا څه وختی راسې دې د کوثر سره
هنړ دے څه چل دے؟
انخر: خانه! څه به اووايو ددې زماني دا اولاد ورك شه او
نوم نې ورك شه. بېگاه تاسو څوکيدار راولېږه، چې مېلمانه
دې حجرې ته راشه. زه په کټ کښې پروت وم، ما ده ته اووے
چې لاړ شه مېلمانه دی چې بستونه سم کړے ده. هډو زما خبره
اونه منله.نو.
اشرف: نه نه! دا مطلب مې نه دے دا ته چې وائې.
انخر: پوهه شوم خانه پوهه شوم، شر په دې دے چې يو

بست پکښې کم کوز دے، زه دده نه پوښتنه کوم چې بل بست څه شه؟

اشرف: عجیبه خبره ده، بستونه تا سم کړی دی او ټولولو له نې هم ته راغلے وے. بیا د هغه غریب څه قصور شو؟

انځر: او جی! او جی! هېڅ قصور نې نشته دے، بې ګناه دے.

اشرف: نو بیا ته ولې قاریږې، چې ګناه ستا ده.

انځر: یره خانه! خانله خو کنځلو وهلو له ملګرې پیدا کوو کنه.

کوثر: دادا، اے دادا هغه شپږم بست خو هغه دے.

د صندوق په سر پروت دے سړیه! بوډا نې مازغه دې کار هم نه کوی.

انځر: په رښتیا کوثره بچیه! د لونې ډنډ نه بچ شو ګنې خان به څه ویل.

کوثر: دادا چې خبرې ته دې فکر نه وررسی، نو هسې مه وایه، څومره شور دې بیا په دې لږ وخت کښې جوړ کړے وو؟

انځر: د غوا خویه! خبر نه نې لا ددنیا خوارږ تراخه دې نه دی خوړلی ګنې نو.

کوثر: نو خانانو به څه ونیل څه وژلو خو به نې نه. خپل تاوان به ئې اخیستو.

انځر. دغه خو هم زه وایم چې لا بچے ئې نه پوهېږے دې ته

دي فكر نه وررسي. ګوره تيار هاړ دے او د دا نو وخت دے. نانيكانو له مو ثابت كال خدمت كړے دے او منډي تربړي مو وهلي دي. خو ددي بست وركېدل او زمونږ كډه ترل يو شے وو. خداني رحم وكړو خير شو ګني راځخه به هر څه تلي وو.

كوثر: عجيبه خبره ده، خو د خپل تاوان اخيستو حق نې دے نور به راسره څه كوى؟

انځر: چپ شه د خر زويه~ دلته حق څه ګوري نن سبا خو د پښتنو داسي رواجونه دى چې آمان تري غواړه چې د چا زوروى. نو د هغه كور وى او پاتې مونږ دا غريبان خلق شو، نو زمونږ خو هر وخت پښې په سر وى.

كوثر: چپ شه دادا خان راروان دے

انځر: او هو' تا اول ولي نه ويل. زمونږ دا خبري خو به ده تولي اوريدلي وى. خدايه! خير، هاړ ډېر نزدې دے. خدايه خير. خدايه خير.

كوثر: خان صاحب! بست دا دے دلته پروت دے، خو د دادا نه هير شوے وو.

اشرف: او كنه دے نې څه كوى. پردى مال دده پرې څه تلي دى.

انځر: يره خانه! مازغو مې بالكل كار نه كو، نن سبا عمر لاړ تېر شو.

اشرف: ډېر بنه كار به شروع كړى خو كه يو څو ډبونه دي وخوړل

انځر: (په خندا غوندې) يره خانه! ستاسو د دعا برکت دے کنه زمونږ دا لوړه تنده او خراب خوراك دومره عمر چرته ګوزاره کېږي.

اشرف: نورې خبرې آغېږه مه خو چې ته نشې کولے. نو زوے دې راولېږه.

انځر: او جی! هم داسې به انشاء الله تعالى چې کوو. بله څه چاره نشته نو.

دوئی لاخبرې کولې، چې د خانانو يو بوډا او زوړ نوکر "يارے" چې په سپينه ږيره دے، راغے او خان ته نې په غوږ کښې څه پټ غوندې وويل.

اشرف: دا څه د پټولو خبره خو نه ده. يار محمد خانه دا خو د خدائی قدرت دے چې هغه څه کوی په هغې به شکر اوباسو. زوی نه لور هم ډېره ښه ده.

يارے: لور هم ډېره ښه ده خانه! خو زونی د خدائی ډېر لونی نعمت دے، خو نه دا هم د خدائی ډېر لونی رحم شوے دے.

اشرف خان: دا خو څه د پخوا غوندې د جهالت زمانه. نه ده چې په لور کېدو به خلقو ته خانونه بد ښکارېدو. البته مور به مې ډېره خفه وی.

يارے: ولې به نه خفه کېږی. ځکه چې مور خو دې زونی په اولاد ډېره خوشالېږی او ډېره خفه کېږی.

خان: نو بیا خو به هغه ډېره خوشحاله وی.

یـارے: ډېـره بـه خوشـاله شـوې وه خـو کـه هلـك وے ، نـو تاسـو به دلته کښې بيا يو وار ګرمه ګورمه ليدلے وے.
یـارے: یـره خانـه! پـه خدائی تعـالی یقـین اوکـه چـې ستاسـو او د کشـر خـان ودونـه شـوی دی، نـو بیـا مـو د ډمـامې او د دوکـړې ټـنګ نـه دے اورېـدلے. بېګـاه داسـې مـې غـوږ وه چـې د خـان زوی اوشـی نـو انشـاء الله تعـالی چـې یـو ځـل بـه بیـا خوشـحالی پـه سترګو اووينو.
خـان: دا څـه دومـره غټـه خبـره نـه ده ماما! هلکـان یـو دا ځـل نه بیا به چرته شی.
یـارے: الحمـد الله الحمـد الله خـدائی دې خیـر کـړی زمونـږ د خوشـحالی هـم تاسـو نـې. نـور مـو ځـوك دی. پـلار مـو ستاسـو دپـلار سـره مـړ دے او زه ذغـه دے ستاسـو پـه مخکښـې روان یـم. عمر مې خوړلے دے. بوډا یم او انشـاء الله تعـالی چـې بچـی بـه مـې هم ستاسـو سـره مړه شـی. غوښـه بـه د هډوکی نـه هېڅکلـه نـه جدا کېـږی. بچـی بـه مـې ټـول عمـر ستاسـو خـدمت کـوی. مونـږ ستاسـو نمـك خـواره یـو. ددې خانـدان ځـائی خپـل یـو. زمونـږ دا حـق دے چې ستاسو په خوشحالئ خوشحاله او په غم خفه شو.
خـان: یـارے مامـا! تـه زمونـږ زوړ سـړے ئـې چـې تـه نـه خفـه کېـږې او نـه خوشـحالېږې نـو نـور بـه ځـوك داسـې وی چـې ستـا پـه شان به وی. نور خلق خو وخت سرکوی.
یـارے: خانـه! پـه لـوئی ذات مـې دې قسـم وی کـه بېګـاه مـې سـترګه پټـه کـړې وی. هـر وخـت بـه مـې د تورګـل د مـور نـه تپـوس

کولو چې د خانانو د کور مزدوره زېری له رانغلله خدائی تعالی دې خیر کړی د خان زوی مې ډېر ارمان دے.

**خان:** ډېره ډېره مننه یارو ماما! ستا اخلاص مونږ ته د پخوا نه معلوم دے. د خان مور هلته کور په ژړا ژړا سترګې سرې کړی چې یا خدایه! زما خو ستا نه ډېر طمعه وه چې ته به اشرف خان له زوی ورکړې. دا دې څه اوکړه د دښمنانو خوا دې راباندې یخه کړه.

**نازو:** مورابی! اوس په ژړا څه کېږی چې په قسمت څه وو، هغه راورسېدل دا طالعمنه جینۍ معلومېږی.

**مورآبی:** ورکه شه جینۍ او د هغې طالع! جینۍ به څه وی او طالع به ئې څه وی لرې شه د مخ نه مې د سپېرې لورې.

**نازو:** مورابی! اوس وخت د ژړا نه دے، د بی بی مور او لور خپل خپلوان ناست دی، سرے بد ښکاری.

**مورابی:** مه اخله د بی بی د نحسو او بد قسمتې مور نوم زما په مخکښې! کنه داسې ګوزار به درکړم، چې لېونۍ به دې کړم.

**نازو:** په دې کښې د بی بی د مور څه قصور دے؟

**مورآبی:** ما د اشرف پلار ته ویلی وو چې دا ښځه ډېره بدقسمته ده، دې چرته ښاده ورځ نه ده لیدلې. لېورزی ته میراته شوې وه، زه دداسې ښځې لور خپل زوی له نه غوارم، خو وې نه منله او لګیا شو چې د اشرف موری! ته نه پوهېږې دا څه خبره ده چې مور ئې میراته ده نو لور به ئې هم

میراتېږي؟ کاوس خاخا زما د پلار ډېر خپل وو. زه د هغه دا خپلولي زمکې ته نه شم غورزولے. نور څه لاس مې نه رسی نو یوه لور خو به نې په کور شګې کړم کنه او اخر خان خپله خبره وکړه او د کاوس میراته لور نې زما زوے له وغوښتله.

نازو: چپ شه مورابي! بی بی ناجوړه ده او په زړه نې هسې هم د لور بوج او زخمونه پراته دی او ته پرې مالګه دوړوې. دا څه د هغې کار و؟

مورابي: لرې شه د ملا لورې! د خان نه دي راته قاضي جوړ کړے دے مسئلې راته کوې. که اوری نو هم بنه او که نه اوری نو هم بنه. زه په دې څه کوم او دې ماله څه کړی دی؟ دا د کاوس لور زما مشره اینګور ماله څه خدمت کړے دے او زما زوے له نې څه کړی دی، لازما په سر مې زوے ته پټې پټې خبرې هم کوی.

نازو: مورابي! د مشرې بی بی په شان ښځې خو به اوس پیدا کېږي. دا د کور ټول کارونه لکه د مزدورانو په شان پخپله کوی او د ټولو نه ورستو اوده کېږی.

مور آبي: زما څه کار دے. تاسو د کور مالکان خپل جوړ کوی نو.

مور ابي: او کنه خوارې خو شګئ ستا ځکه د کاوس لور خوښه ده چې تاله پټ پټها خیزونه درکوی او په تا ئې خرڅوی. زما د خدائی تعالی په فضل سره داسې زوی دے چې مې ورنه اوونیلو نو اوس به ې ورله سر طماچه ګرځولې وی.

نازو: ما دې خدائے د غلاګانو نه اوساتی چرته بی بی غلا کړې ده او نه به اوکړی.
مور ابی: او کنه غل چې غلا کوی نو قرآن قسم ته ئې خان جوړ کړے وی.
نازو: هئے توبه! خوابنې انګور خپل کار زما خو یوه غټکئ ده اوس به ئې په ترخ کښې کړم او روانه به شم.
مور آبی: اوس به ولې نه څې پوهه شوې په تا څوك د بی بی دانی توب نه کوی او تش لاس به اوس ګرځې.
نازو: هغه خو زما د مور په خائے او زه ئې د پښو خاورې یم. زه د هغې مزدوره نه یم، نو د بل چا مزدوری به کوم.
مور ابی: هلئے دا شپنکئ خو زما سره داسې ویل کوی لکه چې مې یور وی او یا خوابنې ورشه جینئ اشرف یا اصغر راوله.
په کور کښې هنر زوګ شه، نازو ئې راحصاره کړه او په جمع خلقو ئې اووهله صرف په دې چې د یوې نیکې مېرمن ملګرتیا ئې کړې ده. خانان هم راغلل او شور زوګ جوړ شو. وروستو پته اولګېده، چې شر په څه شوے دے. اشرف ورمنډه کړه او خپله ناجوړه ښځه ګلون ئې په کټ کښې راحصاره کړه. او لکه د خرنې اوډبه وله، د ګلون خپل خپلوان دوه خوېندې او یوه مور هم د بچې کېدو له راغلے وې او ناستې وې، خو د خدائی په چارو ئې لاس نه رسېده. جنګ خورشه، ګلون سترې ستومانه او درمانده په کټ کښې پرته ده، د چا مجال دے چې

ترېنه تپوس اوکړی، چې بی بی خنګه ئې؟
خانان په شر شدت باندې حجرې ته لاړل. نازو زر زر خپله غوټه اوتړله او په اخر کښې د خپلې نيکۍ او بدقسمتۍ مېرمن خواله راغله.

ګلون: څه کوې نازو چرته دې لام تړلې دے.

نازو: زه نوره دا د وهلو ټکولو مزدوری نه شم کولے بی بی.

ګلون: هائے بختورې خنګه آزاد ژوند دې دے، دلته خفه شوې نو بل خوا روانه شوې. ليکن زه، زه زه بدقسمته به چرته لاړه شم، چاته حال اووايم، زما څوك دی، زما خدايه زه څه کوم. زه خو چاته په ښو سترګو کتے نه شم. زما څه حال دے لکه د سپی په کټ کښې ناجوړه پرته يم، نه مې د تپوس څوك شته او نه د خبرې. دا چا کړې ده چې د مور په وينا د ځلويختی ښځه وهی او د مور او د خوېندو په مخکښې هيڅ چاته ګناه نشته. هر سړی ته خپل خپل قسمت په برخه ورسی، زما به دا قسمت و، زه چاته اوژاړمه، چاته فرياد اوکړمه، چې په ما څه تېرېږی. هائے پوښتی مې ماته شوه، دا سر مې اونيسه.

نازو: ډېر درد کوی که څه مات دے.

نازو غريب نيولې ده او د غريب نه ډکه د بی بی په سر رامنډه شوه او ،ئې نيوه، نازو د بی بی يوې خور ته وائیء:

نازو: راشه بی بی دا واړه جينئ ورسره راواخله داسې ژاړی.

بی بی: ژاړی به خود چې د مور په قسمت کښې ئې ژړا

ده، نو دا به ښنګه اوخاندي.

ګلون: نازو ته روانه شوې، مه څه زه درته منت کوم.

نــازو: ستا خبره خو ماته دومره ده بې بې لکه دا بره آسمان خو څه اوکړم، د مور آبې راته سترګې کوزې دي. په کور کښې به ښنګه ګوزاره اوکړم.

ګلــون: اے جینــۍ! بــاهر تــه چــې لاړه شــې نــو بيــا بــه د چــا مـزدوري کــوې کنــه، نــو دلتــه دې عمـر شـوے دے او شــپې ورځــې دې شــوې دي، دلتــه دې دا د خپــل قســمت ســختې ورځــې نــه اوباسے، زمـا خـو بـه دربانـدې سـود کېـږي کنـه، چـې څـه زمـا پـه شان يوبدقسمته ښځه بله هم شته.

نــازو: خدائے دې نـه کړي چې زه بـه دلتـه پاتې کېـږم، د خداى پاك دا نوره دنيا چرته سوې ده څه؟.

ګلـون: خيـر دے خيـر خفـه کېـږه مـه، دا خـو کـور دے، هـر څـه پکښـې راځـي. جـنګ جګـړې. وهـل کنځـل نـو تـه بـه داسـې خفـه کېږې.

نــازو: ماتـه هرڅـه چـې وائـې مـنم، خـو تـا پکښـې بدنامـه وي، وائي چې مشره انګور مې شے پټ کړي او نازو ئې خرڅ کړي.

ګلون: دا خـو خدائے پـاك تـه معلومـه ده، چـې مـا څـه پـټ کـړي دي او تـا څـه خـرڅ کـړي دي. کـه زمـا پـه سـر ددې کـور نـه لـرې کېږې، نـو زه درتـه منـت کـوم، نـازو مـا يـواځې دې سپورو سـتغو تـه مـه پرېـږدهز ماتـه داسـې ښكـاري لكـه خپلـه خـور. كـه تـه رانـه لاړې، نـو چـې راپـورې بـه څـه جـوړه وي. دا خـو لا ښـه ده چـې تـه

نې.

نازو: نه بی بی زه نوره یوه شېبه هم دلته نه کوم. پـه مـا ډ
انداغ دے، چې ډېره مزدوری او ډېر وهل کنځل وړم.

ګلون: خواره شې! په خپل کور کښې داسې کېږی لېونۍ
کېږه مه.

ګلون او نازو دا خبرې کولې، د ګلون خوېندو او مور پـ
زارو قطار ژاړی پـه خپـل تقدیر ورلـه افسوس ورځی. د ګلون
مور چې ډېره پاکـه او دینداره او مسلمانه ښځه ده، د خاوند
هغې نیك کارونو پـه بدل ډېره خوشـه وه. ددې وجې نـه ئې بل
واده اونـه کـړه، ځکـه د ګلون مور روزون میراتـه پـاتې شـوه او
ځلور لونړه ئې بې روره پـه دنیا کښې پیدا کړی. د خاوند د
ډېر مـال او بسـاط و، تـول د هغې لیورونو تـه پـاتې شـه، د لېو
نې درې زامـن او دوه لونـړه وې، د مشـر لیـورزی نـوم ئې قبـاد
وو، قباد د خپل تره غوندې لویـه دبدبـه نیـك خوئی او ښکلے قد
و قامت لرلو. دا د تـره لونړه ورتـه د خپلو خوېندو نـه کمے نـ
ښکارېدے. بلکې د دوی بـه نې د هغـوی نـه زیـات عـزت او
داروهدار کـول. د نـازو او ګلون دا مـذکور کېـده او دهغې مـور
او خوېندو دا هرڅـه اورېدل هرڅـه ئې لیـدل. لیکن د چـا کلـه
مجال و، چې څه نې ونیلے وے.

روزون: پرېده حینئ چې تالـه بـه هـم غـاو درځی او نـازو هـ
تنګه ده. نو پرېده چې ځی.

ګلون: هئے هئے خوړې آبی، تـه څـه خبر ئې چې زمـا ځنګ

قسمت دے او څه راباندې تېرېږي.

روزون: ستا قسمت خو ستا سره دے. نو دا غریبه ولې په دې تنور کښې حصاره وې.

ګلون: ته نه پوهېږې مور چې زه څه وایم. نن سبا خو دېوالونه حالونه وائي، یرېږم که چا راځخه مور ابې خبر کړه. نو ژبه به رانه پرې کړي. د نازو ددې کور نه وتل او زما شرمول یوځائے دی. اوس به وائي چې دغه ده وینئ د کور ښځه نې راځخه اووېستله، ګورے چې د خپل پلار کره ئې اولېږله او که چرته د خوبندو کره نو بیا به زه څه وایم، دا ساعت لا ښه دے چې تاسو خو کله ناکله سترګې مخامخ کړئ. څه لاړې مې تېرې شي او که نازو اووته، نو بیا خو مې عمر ګران دے. نو نه به تاسو په دې طرف څوك راپرېږدی او نه به زه چرته درشم.

روزون: ته ښه وے هر سړے د خپل کور په جوړ ښه پوهېږي.

ګلون: کور خو کور وی. هر څنګه چې وی. لیکن زما کور نه دے په ژوندونې ګور دے. زوی ستا نه دے شوے او بدقسمته زه ګڼړلے کېږم. دا خو د الله پاك کار دے. زما او ستا څه قصور دے.

روزون: چپ شه بچئے! څه چې په قسمت وو. هغه راورسېدل. اوس خو مړه او ژوندئ د دې کور نې او خوانبې دې هم ډېره ښه ښځه ده. په ترخو کښې خواږه وی. ناکام کوه چې ګوزاره دې ښه کېږي.

ګلون: ناکام خو مې هڅوکي وراسته کړل، څلور کاله مې
دديې کور کښې تېر شو او د چا د خولې نه مې ښه لفظ خان ته
نه دے اوریدلے. مور ابۍ هر وخت دا وائی چې کشره انګور مې
د ډېر لونی کور ښخه ده او ډېره ښه ښخه ده او ماته هغه وائی
چې په خوله نې راځي او دا شوی کارونه خو اوس تا په خپلو
سترګو اولیدل ورك شه پښتانه او د دوی مالدار کورونه او
غلط رواجونه. زه خو وایم چې په یو غریب کور کښې مې
نصیب شوے وے، خو چې ددې هنر زوګ او وهلو ټکولو نه
دمه وے، د جوارو نوړئ به مې وچه خوړه خو زړه به مې په آرام
و. زه خپل پلار او تاته ښېرې نه کوم، مور دا ستا غلطی نه ده،
دا زما خپل قسمت و ګنې دا نورې زما خوېندې نه دی څه. بیا
هم د دوی خو ګوزاره کېږی کنه خو زما دا قسمت داسې او
لړلے تك تکور دے. په داسې کور کښې خو په تخت که څوك
ناست وی خو هم به د خاورو ایرو نه ناکاره او لاندې وی.

روزون: زمونږ هېڅ قصور نه دے بچیٔ چرته چې مونږ ته په
زړه کښې آزار رانه ولې، د تقدیر لیك هېڅوك نه شی ورانولے،
دا به قسمت ته منظوره وه.

ګلون: زه به ولې تاسو ته ښېرې او آزار کوم، مور دا خو به
تاسو زما دپاره ښه جوړوله خو قدرت ته به منظوره نه وه. بابا
خو مې نشته خو شکر دے د تره زوے قباد خو شته دے کنه
ماته خو د خپل رور په شان ښکارېږی او کله چې دلته راشی،
نو داسې خوږې خوږې خبرې راته اوکړی چې بالکل د پلار
غوندې سود مې پرې اوشی.

روزون: خدائے پاك دې شته كړي. په رشتيا ډېر ښه سړے دے ګنې په اوسنئ زمانه كښې د تره د لونړو سره د چا څه كار وي او بيا مونږ غونډې بدنصيبه او زه خو ورته د مور نه هم كمه نه ښكارېږم او اوس به هم انشاء الله تعالى ستا د لور د كېدو نه خبر شوے وي او غريب به چرته اولېږي پاخې راروان به وي.

ګلون: خدائے پاك دې نه كړي هغه زما رور د خدائے دى كونجارې كور ته نه راولى ګنې. مور آبې خو به ئې اوس لكه د منزرى د حلقه تېر كړي. ډېره يرېږم چرته رشتيا رانه شي. ولې نه خداے پاك دې راولى چې ما خو په دې حال كښې اووينى چې زما په خور څه تېرېږي او ددې څه ژوند دے ولې هغه به زما دپاره څه اوكړي؟، چاته به څه اووائى؟.

دوى لا دا خبرې كولې چې ناڅاپى آواز شه، چې قباد خان راغے. قباد خان د كورنو خانانو سره ډېر راشه درشه اوكړل، ډېر په آدب سره د اشرف خان په خوا كښې كېناسته د خپلې خور دپاره ئې ډېر سامانونه راوړي وو، ورسره خپل دوه درې نوكران هم موجود وو.

قباد: اشرف خانه خفه كېږه مه دا به قسمت ته منظوره وه.

اشرف خان: خان په دې كښې د خفه كېدو څه سوال دے.

قباد: واقعى ستا دپاره دا د خفګان خبره نه ده، ته خو لا اوس خوان بچے ئې. او دا دې لا اول بچے پيدا شه، كه خداے پاك رحم اوكړي، نو زوے به دې بيا اوشي.

اشرف: د زوی خو مې د سره امید ورك شوے دے.

قباد: اشرفه! خان نې خو بې خدایه خبرې مه کوه.

اشرف: عجیبه خبره ده، چې د یوې ښځې مور دې میراته وی. د هغې بله لور دې میراته وی او ددې هم لور اوشوه. دا څنګ زوی راوړے شی.

اصغرخان: لاله جی دا خو تاسو بالکل د جاهلیت غوندې خبرې کوئ. توبه اوکې. دا څه د ورندار بی بی کار خو نه دے.

اشرف:او کنه ته به داسې ولې نه وائی روغ زړه دې دے.

زوی به راوړې او د ټول مال واکدار به شی.

اصغر: لاله جی! زما زوے ستاسو زوے دے او ستاسو بچی زما بچی دی.

اشرف: ګوره ګوره کوه خوله به دې خوږېږی. دا ارمان به دې هېڅکله پوره نه شی، زه به اوس ځانله اوس بل واده اوکړم.

قباد: خان واده خو د خپلې مرضئ شے دے. خو که چرې ستا د بلې ښځې هم زوے اونه شی نو بیا؟.

اشرف: بیا اوکنړه چې زه بدقسمته یم.

اصغر: لاله جی! په ورندار بی بی دویمه ښځه کول ګویا فرشته تنګول دی، د هغې غریبې څه قصور دے او که چرې زمونږ د کور دا حالت وی. نو دویمه ښځه ساتل هم ګران دی.

قباد: پرېږدئ دا خبرې اوس، خانونه مو شرمولی دی، د

کلی محلت خلق ولاړ دی او تاسو یو بل ته بدي ردي وایی. راشه ځوکیداره دا ټوکي چرك، غوړی ا دا نور نرے نرے سامان چي د ګلون دپاره مي راوړے دے، کور ته ئي ورکړه او ورته اووایه، چي تادی مي ده واپس کور ته ځم.

(خدمتګاري سامان راوړه، قباد خان یو نیك خویه انسان و، د خپلو خوېندو په نسبت په دې خوېندو ډیر مهربان او منین و، ځه ډیر سامان ئي ورله کړی و).

(خدمتګاره راننوته).

مور ابی: خواري خوشکۍ ته لاهغسي په دې کور کښي ئي، دا ته دا دومره وخت کوم ځاے وې او څه دا مخ دې ورك شه چي بیا رانه شي.

نازو: مور ابی زه به چرته لاړه شم. زما خو هم دا کور دے نو.

مورابی: د سپی لور چه ګذران دي نه کېږی نو د خان نه اوچت ټوپ مه وهه.

نازو: مور ابی په خپل کور کښي داسي کېږی نو.

مور آبی: دا په سر او ترخ کښي دې څه نیولی دی.

نازو: دا خو قباد خان راغلے دے او بی بی له ئي سامان راوړے دے

مور ابی: ته راوړه څه دی.

(نازو ورله سامان راوړه. نازو ډیره خوشحالېده. چي څه که خیر وی مور آبی به ډیر سامان اووینی. نو بی بی ته به ئي

سترګې نېسې شي. کله به نې يو څيز خودلو، کله بل، مور آبۍ هرڅه شمار کړل او د نظر نه نې اوويستل)

مور آبۍ: دا سامان په الماري کښې کېږده او چرګان دې د چرګو کوټکۍ ته پرېږده، پاتې شو اورنړے او سيزنۍ دا هم خوندي کړه که خدائې رحم اوکړه او د نګهت زوے اوشه، نو ورله به نې راواخلم.

نازو: ولې مور آبۍ د نګهت بي بي موږ او ورور نشته څه؟

مور آبۍ: زه نې مور يم کنه.

نازو: نو ته به ورله دا سامان پيدا نه کړې څه؟

مور آبۍ: د خوشکۍ لور په سر مې مه دړکوه دا سامان څه د ګلون د پلار کور خو نه دے.

نازو: قسم په خدائے دے مور آبۍ چې دا قبادخان راوړے دے.

مور آبۍ: پوهه يم پرې خو د قباد خور چې دا څلور کاله دلته ډکه شوه او تشه شوه نو د هغې په بدله دا سامان څه شے دے.

(دوی لا په دې مذکور کښې وے چې د کلي يوه زړه ښځه عذرخانۍ له راغله)

مور آبۍ: راځه راځه قمرو جان ښه ده چې راغلې.

قمروجان: غم ښادي او عذر مبارك دې کنه نو نه به وے راغلے.

مور آبۍ: ولې ولې به نه راتلې.

قمروجان: د بی بی په لور داسې خفه یم لاس مې نه رسی نو څه چل اوکړم. خو دا به الله پاك ته منظوره وه.

مور آبۍ: ورکه شه خوله دې بنده کړه، هر سړے به راځی او وائی به په لور خفه یم او په لور خفه یم. زما دې په غولو لړلی قسمت ته نه ګورې چې داسې انګور نې راله راکړې ده. د اشرف د ټولو ملګرو زامن شوی دی او ددې پکښې لور اوشوه.

قمروجان: چپ شه بی بی دا څه وائی دا څه د هغې کار نه دے خو الله پاك ته به منظوره وه او اوشوه.

مور آبۍ: ورکه شه دا او لور نې اوس دې شرم ته اوګوره چې دوه خوېندې او یوه مور نې لکه دقلعه د نوکرانو ناستې دی او هډو د تلو نوم په خوله ناخلی یو شرمېدلے، د خوند رنګ نه پاك د تره زوے نې دے، هغه لا پسې هم نن راغے او راوړی یې څه دی. داسې کورونو ته څوك دا د شرم ډك لړ څیز راوړی. لکه قباد چې اوکړو.

قمروجان: قباد خان خو ډېر ښه سړے دے او بیا ددې خوېندو په حق کښې خو ډېر زیات ښه دے.

مور ابۍ: او او ډېر زیات ښه دے. داسې به څوك اوکړی چې د خپلې خور پرتوګ به چنار ته اوخېژه وی. ته اوګوره.

قمرو جان: دا لس سیرره غوړی. شل چرګان او پېنځلس ګزه ټوکے. هغه نور مې نه دی لیدلی چې څه نې راوړی دی. نو لنګې خور له څوك دا لړ سامان راوړی.

قمروجان: بس که مور آبی ما وے چې رشتیا نې څه نه دی راوړی.

مور آبی: خدائے یو د کلی خلقه په نخاس میرات که، هر سړے لکه د منیو په یوه ډډه رغړی، زه څه وایم او تاسو څه وانې. زما دا خپله انګور خوښه نه ده، زه به خپل زوی له ځامخا بل واده کوم

قمروجان: داسې انګور خو دې خدائے پاك هر چاله ورکړی لکه چې تاله نې درکړې ده.

مورآبی: ورك شه ددې ښه والے او ددې قسمت.

قمروجان: قسمت خو د هغې کار نه دے نو.

مورابی: څوك چې ازلی سپیره وی هغه غوړیږی نه او نه ښه کیږی. خو هم دغه شان وی لکه څنګه چې دی.

(نازو راغله او د مور آبی په خوا کښې غلې غوندې اودریده)

مور ابی: نازو بیا دې د مېرمن دپاره څه راوړو که.

نازوك بس مور آبی ستا خو هم صرف په خیال کښې دغه یوه بی بی ده.

مور آبی: ډېرې تېرې بېرې مه وایه د خوشکۍ لور.

نازو: ښه ښه ما څه ونیلی دی، خو تا تپوس اوکړو او ما جواب درکړ

مور آبی: ته څوك نې چې ما له جواب راکوې. هله جینکو

ورشي او زوی ته مې آواز اوکړئ او دا دجال لور زما د جواب شوه.

نازو: ډېر وهل کنځل مې وړی دی مور آبئ او ورپم هم نور د خدائے دپاره څه مه وایه. باهر قباد خان په دروازه کښې ولاړ دے، هغه به وائی چې دا مور آبئ څه کوی.

مور آبئ: یره خو واقعی د سپی لور ئې، نو تا ماته اول ولې نه وے چې قباد مې باهر ولاړ دے څه وائی.

نازو: وائی چې خپله خور وینم.

مور آبئ: دده دا خپله خور په خپل کور هم خوښه وی که یواځې زمونږ په کور ئې خوښه ده، وایه چې راځی.... خو

هنه دا واوره هغې بلې انګور ته مې اوایه چې پټه شی او ورشه ورپ جینئ ته ئې د خور په کمره کښې کینه چې خور او رور څه وائی.

(نازو ولاړه او خان ئې کور ته راوست)

قباد خان خپله خور د ښلار په کور ساتلې وه. چې په پیاړمه کټ کښې ئې اولیدله سترګې ئې د اوښکو ډکې شوې او حلق ئې لوند شه، خو د خدائے په چاړو ئې لاس نه رسېدلو.

قباد: السلام علیکم خور مبارک دې شه مبارک!

ګلون: زما سلام دې روره پاڅېدې نه شم چې دا لاس دې ښکل کړم. رانې کړه چې په پرتو نې ښکل کړم. ستا نه زار شم.

قباد: ولې څه ناجوړه ئې څه؟.

**ګلون:** ډېره ناجوړه یم. روره ډېر تلیف دے راته.

**قباد خان:** نو چې طبیب مبیب راولم کنه.

**ګلون:** نه نه دا د طبیب نه دے روره.

**قباد:** آخر څه مرض دے، د بچې سره خو مور دومره نه کمزوري کېږي.

**ګلون:** خینې ښځې ډېرې کمزوري کېږي روره (ژړغوني شي).

**قباد:** ولې خور ته خو څه ژړه غوني غوندې معلومېږې.

(د قباد خان هم د سترګو نه اوښکې روانې شوې او خپلې بلې خور ته ئې اوکتل چې هغه هم مېلمنه راغلې وه. ته وایه خور څه چل دے)

**خور:** هېڅ چل نشته روره هر سړی ته خپل نصیب رسی.

**قباد:** زه حېران یم چې زما تره دا خپله لور په ډېر غرور او فخر سره ورکړې وه او دا...

**خور:** داسې تنګ عمر ئې دے چې څه وایه مه.

**ګلون:** دروغ روره زه خو ډېره خوشحاله یم. خدائے دې نه کړي چې زه به په داې کور کښې خفه شم، هرڅه ډېر دی او بیا ستا دا دوه سترګې مې اولیدې نو لکه چې بلکل جنتی شوم.

**قباد:** آخر څه نه څه خو شته هسې خو نه دہ، اووایه کنه.

**ګلون:** هېڅ نشته خپله روره هرڅه ډېر دی.

**خور:** ډېر خو هرڅه دی خو ددې دپاره نشته دے.

ګلـون: چـپ شـه نـامردي! مېلمـه رور مـې راغلـی دی او تـه ورتـه تـنګې تروشـې خبرې بيـانوې. کېنـه روره چې يـو بـل خـو وينـو کنـه. ډېـر شـکر دی چې تـه راغلـې، ستـا د زوی نـه خبـر شـوم خـو نـاجوړه وم، هـډو تپـوس تـه جـوړه نـه شـوم، بناپسـته دی کنـه. خـدای دې لـوی کـړي. مـور بـه نـې ډېـره خوشـحاله وي. ډېـره بنـه بنځـه ده، خانـه چرتـه چـې ورره جـنګ او نـه کـړې. زمونـږ داسـې ورنـدار ده چې مونـږ پـه سـترګو پـورې کـوي ډېـر بنـه راتـه ګـوري، خـدای دې آخـر او دنيـا دواړه بنـه کـړي او الله پـاك دې ورلـه ډېـر شـتمند اولاد ورکـړي، دا مـې ارمـان دی چې يـو خـل مـې خپلـه ورنـدار بيـا اوليـدې، وراره بـه مـې زمـا دپـاره بنکـل کـړې او زه، زه خـو د ګـور مـړې يـم او يـا يـو قيـدی بنديوانـه پـاتې يـم. زمـا هېڅـوك نشـته روره هېڅـوك د خدايـې دپـاره کـړه چې زمـا نـه خـان ناخبره نه کړې.

د قبـاد خـان ګرېـوان لونـد شـه، غريـو اونيولـو او پـه رومـال نـې سترګې اوچې کړې، رو غونډې پـه وينـا شـه:

قبـاد: چـې پـه تـا دومـره تکليـف تېرېـږي، نـو تـا زه ولـې نـه يـم خبر کړې.

ګلـــون: اوس زمـــا د عمـــر کـــور دی روره! دا بـــه زمـــا خپـــل قســـمت وه ماتــه راورســـېده. نــو زه د خپـــل قســـمت دپـاره تـا پـه لـړزان کـړم تاتــه تکليــف دراورســوم؟ ماتــه هېـڅ تکليـف نشـته. بنـه خوشـحاله يـم، خـدای دې غـټ لـره آبـاد اوسـې، چـې هسـې راتـه غږ کوې نو دا زما دپاره لويه خبره ده

قباد : آخر تا ګناه څه کړې ده؟

ګلون: صرف دا چې د يوې مېراتې مور لور يم، خوابنې مې وائي چې ته به هم د خپلې مور په شان مېراته ئې او زما زوی به مېرات شي.

قباد:دا څه خبره ده خور تا دې خدائې نه مېراته وي او که چرې زوی دې اونه شو، نو اشرف خان به خان له بل واده اوکړي کنه.

ګلون: خانه هره سخته به تېره وم، خو چې بن رابانديې اونه شي.

قباد څه اوکړو خور دا د پښتنو رواج دے نو.

ګلون: چې شه روره! مور آبې راته هسې هم توره بريخ ده. په اور مې سېزی او چې لا بله ښځه دې کور ته راشی لا به مې سخت عمر شي.

قباد : د خدائې کارونه اکثر د خير وي، خور کېدا ے شي چې د بلې ښځې سره ستا عمر ښه شي.

ګلون: دېر ودونه به خان اوکړی خو زه به د مور آبې په ستر ګو کښې ښه رانه شم.

قباد: پرېږده خور خان مه خفه کوه . ستا به دا قسمت وي. خو چرې په زړه کښې دا خيال رانه ولې چې ستا پلار مړ دے. زه ستا پلار مړ يم. هن دا واخله پنځوس روپۍ خپل ضرورت پرې د سره کړه او بيا که دې ضرورت شو، نو جواب وکړه.

ګلون: هله ستا نه قربان شم ورورہ! روپۍ د خان سر؛

یوسه، اوس به مور آبی خبر شی بیا به څه وایم؟

قباد: آخر مور ابی تاته زما په پیسو ولې قارېږی، دا خو زما مال دے.

نازو: بی بی ښه واني خانه روپۍ بېرته واخله.

قباد: نازو ته ولاړه ئې ته خو دُدې خیال ساته کنه.

ګلون: ځکه خو هره ورځ دا غریبه د مور ابی پنځه شپږ لوړه سره د بدو ردو خوری، چې زما ملګرتیا کوی.

نازو: پرېږده مرې دا خبرې خوږېږي واپس که.

قباد: څه چل دے نازو روپۍ ولې واپس واخلم.

نازو: خانه ته خبر نه ئې اوس به بله غوبمه جوړه شی. خو دا روپۍ لیدل او د مور آبی نیني کېدل یوخائے وی اوس به وائی چې ګلون مې تونړئ او کندوان تش کړل، هرڅه ئې خرڅ کړل او بیا دې دروغو ته ئې ګوره چې وائی چې روپۍ راله رور راکړې.

قباد: څه ښه ده نو چې روپۍ نه اخلې نو بیا چې څه ضرورت کېده. نو ماته وایه. ابی او خور تاسو خان تیار کړئ چې ځو، ټانګه مې دریسې راوستې ده.

مور: که خفه کېږې نه خانه نو مونږ به یو دوه ورځې دلته پاتې شو.

ګلون: په ډکو سترګو سره خان ښه وائی ابی ځئ د مور آبی د سترګو نه به پیروی لاړ شی کنه. ما خو به نه تنګوی کنه

لړه خو به په آرام شم.

قباد: ښه وائی آبی ځئ چې خو، چې دې ته تکلف نه وی.

ته اوښایه ګلون لور دې څنګه ده؟.

ګلون: دا هم زما په شان بدقسمته ده.

قباد: او هو دا خو بالکل د مور په شان ده. خدائے دې لویه کړی، څه نوم دې ورله ایښودے دے؟

ګلون: نوم دې غریبې له؟.

قباد: عجیبه خبره ده خپل بچے ورته دومره بد ښکاریږی؟ ددې نوم تسنیم شو. انشاء الله تعالی دا به ډیره طالعمنه لور وی. دا زما ډیره زیاته خوښه شوه، خور که خوښه دې وی نو زه نې خپل زوی له غواړم.

ګلون: هله خانه دا خو ستا د زوی د پښو خاورې ده، دا خو د هغه نه قربان ده، ته به وائې او زه به انکار کوم، خو...

قباد: نو خو پکښې څه ضرورت دے؟ آبی هم ناسته دَه او نورې دوه خویندې مې هم موجودې دی. آمین دعا د خیر وکړئ.

ګلون: خانه دا د یو بدقسمتې مور لور ده، چرې دا بدقسمته نه وی.

قباد: خپل بچے پخپله ساتل پکار دی، ګلون دا د نن نه زما انګور ده.

ګلون: لیکن مور آبی به څه وائې.

قبـاد: زه بـه د هغـې نـه تپـوس اوکـړم، ورشـه نـازو تـه د مورآبۍ نه تپوس اوکړه.

(نـازو راغلـه او د مورآبـۍ پـه خـوا کښـې اودرېدلـه او رو غونډې ئې ورته د قباد خان خبره وکړه).

مـور آبـۍ: يـا خدايـه شـکر دے شـکر! چـې خپلـه بدقسـمته خورزه ئې خپـل زوى لـه اوغوښتلـه. مونـږ ئـې د عـذاب نـه خلاص کړو، کنه ددې سپېرې سره بـه مـو څـه کـول، ورتـه وايـه چـې ډېـره خوشحاله شوه.

قبـاد خـان: ډېـر شـکر دے، دا خـدائے مهربـانى اوکـړه، تسـنيم زمـا لـور ده او زمـا اينګـور شـوه. ښـه ده آبـۍ خـان تيـاره وئ چـې خو، زه حجرې ته ورځم چې د اشرف خان نه رخصت واخلم.

(قبـاد خـان حجـرې تـه راغـے او ټولـه خبـره ئـې اشـرف خـان تـه اوکړه هغه هم ډېر خوشحاله شو.)

قباد خان: اشرف خانه! مونږه خو رخصتېږو.

اشرف خان: (په کوزو سترګو) شپې ته نه پاتې کېږئ څه.

قباد خان: خم تادى مې ده، مور او خوېندې مې هم ځي.

اشرف خان: ښه ده ډېره ښه ده رخصتېږئ نو ځئ.

د غـرمې د ډوډۍ وخـت و دوى د اشـرف د کـور نـه ورى تـرى په ټانګه کښې کېناستل او رخصت شول.

ګلـون د خـپلې ورې بدقسـمتې لـور سـره پـه سـرو سـترګو بيـا يوازې په قيد کښې پاتې شوه.

# زخم

ښه سره غرمه ده، واله د اوبو ډکه بهېږي، نازو خوشحال
خوشحاله په نظر راځي. د جمعې مبارکه ورځ ده، خلق اودس
کوي، نګهت بي بي ښکلې ريښميني جامې اچولي دي. د
نرونوکو پنړهې ئې په پښو دي. په سر کښې ئې قطار قطار
ګلونه ښکاري. کله يوځائے ته منډه کړي او کله بل ځائے ته. مور
آبي تري پوښتنه وکړه نګهت بي بي اودس کوه ناوخته دے بيا
به دې نمونځ قضا شي.

د مور آبي نګهت بي بي ځکه خوښه وه چې دا ورسره سم
وهل کنځل کوي. د دنيا قانون دے. بې وقوف سړي ته زوره ور
وائي او شريف ته کمزورے او کمزورے سړے هر سړي ته بد او
ناکاره په نظر راځي. ګلون غريبه د ځلوېښتئ اودس ته انتظار
کښې غلې د يو ونې لاندې په زمکه ناسته سوچ کوي.

مور آبي: ګوره نګهت اودس زر کوه بيا به خانان چائے زر غواړي.

نګهت: دا زه څه د چا مزدوره نه يم.

مور آبي: خدائے دې تا مزدوره نه کړي. خو دکور مهرمن خو ئې کنه! کار خو به کول غواړي.

نګهت:خلق به ځلوبنت ځلوبنت ورځې په کتونو کنبي په قلاره پراته وی او زه به د درست کور مزدوريانې کوم لکه چې آنډيوالـه يم يا چرته ډمه شاځيله درته ښکارم څه. زوی دې راباندې نکاح کړې ده او په ډېرو منتونو درلـه پلاز درکړې يم، په خپله ورځ به کار کوم. د بل چا په ورځ مې د کار حق نشته.

مورآبي: آخر خو مسلمانه ئې کنه هغه بنځه ناجوړه ده او ته کار نه کوې، نو دا به څوك کوی؟

نګهت: ناجوړه ده نو زه څه اوکړم. دا مزدورانې ئې صرف زما په برخه ليکلې ده چې ناجوړه او کار نه شی کولے. نو زوی ته دې اووايه چې خان له بل واده اوکړي.

ګلون: خور قاربېږه مه د کار به خدائے ډېر ښه ثواب اوکړي.

نګهت: د غولې جارو کونکې مهرمن ته څوك ئې چې زما سره خبرې کوې. ته زما د خبرو شوې. په ځلوښتې کنبې لکه د سپې په کټ کنبې پرته وې چا درلـه ډوډی هم نه درکوله. اوس روغه څه شوې چې په ما پورې لکه د مچۍ ونښتلې. اوس به مې خاوند راشی او ورته به ټول حال اووايم.

ګلون: قربان شم درنه خور! ما غريبې ته ګوره او په تا

پوري نښتلو ته، خو دا پښتنې سې لړ درد کوي، نو سوچ کوم چې اودس اوکړم او که نه، هسې نه چرته قوسر شم او چې جوړه شم که خیر وی نو بیا به ته لکه د مېرمنې ناسته ئې او زه به درله مزدوری کوم، خو اوس کار اوکړه چې مورآبې درنه خفه نه شي.

نګهت: دا مور آبې دې د کله راسې خوښه شوه، چې کار اوکړه چې مور آبې خفه نه شي. ما دې خدائې په کټ کښې کېنه نه وی. په خپله ورځ به کار کوم په خپله ورځ به کوې. زه درته سوالي ښکارېږم څه؟ په ما به زر ورچلوې اوس تاته ګوره خوارې غریبې! ته څوك ئې چې ماته دا خبرې کوې؟

ګلون: که زه خواره غریبه نه وے، نو دې کور ته به ولې راتلم خور!

نګهت: یعنې زه درته هم غریب ښکارېږم؟.

ګلون: زما څه مجال دے چې تاته غریبه اووایم، خو زه غریبه یم. په خپل قسمت خواره یم.

نګهت: چې ته دا ژبه لرې نو خواره به ئې.

مورآبې: بس که ګلون څه شور دې جوړ کړے دے. بیا دې غوږون نه کېږي.

نګهت: دا سپی غاپی ته ورته هډو څه وائی نه؟.

ګلون: غاپه سپی غاپه! هډو سترې کېږې نه

نګهت: سپیٔ به ته ئې او سپیٔ به دې مور وی.

مورآبی: بس که ګلون کنه درته وایم غلې شه!

ګلون: عجیبه خبره ده ګناه چاته ده او ته قارېږې چاته؟

مورآبی: دا ټول قصور خو ستا دے غلې غلې لګیا ئې هډو د ادب کولو په چل پوهېږې نه.هغې غریبې درته څه ونیلی دی او که څه ئې اووئ خو چرته یو دوه خبرې به ئې کړی وی. پرېږده.

ګلون: بل سړے شل وانی، خو چې زه یوه خبره اوکړم هغه په دې ټول کور کښې نه ځائېږی.

مور آبی: اوس روغه موټه ئې، د ځلوېښتئ دا مطلب نه دے چې ته په کور کښې په قلاره ناسته ئې. خپل خاوند له کار کوه کنه!

ګلون: اصغرخان هم زما رور دے ماته د هغه نه بنه بنکارېږی. مورآبی زه به هغه له هم مزدوری کوم.

نګهت: خدایه توبه مې دې وی، خپل ورو کی لېور ته څوك داسې وائی چې هغه مې هم خوښ دے.

ګلون: ډېرې سپکې مه وایه نګهت: هغه زما کشر ورور دے.

نګهت: او کنه چې پلار ئې نه کړې او ورور ئې نه کړې. نو خپل به ئې په څه کړې؟.

ګلون: که زړه دې چوی او که پاتې کېږی خو هغه زما ورور دے او زه به ورته ورور وایم.

نګهت: چې هغه ستا خوښ دےنو زه به څادر په سر کړم اوس په د پلار کره لاړه شم، دا تا څه شرمول راخیستی دی.
مورآبی: ګلون سړه شه. ستا د پردی خاوند سره څه کار دے.
نګهت: او کنه داسې رونړه ستا ډېر پیدا کېږی. هغه درله خکه دا دومره خدمتونه کوی، دا چل دے. زه څه خبر وم چې تا پټ غوندې اوونیل چې هغه زما ورور دے.
مورآبی: چپ شه نګهت! ته په خپل خاوند دروغ وائې.
نګهت: ته خبر نه نې دا څو ورځې اوشوې چې د کور په طرف نه راښکاره کېږی او نه راته ښه ګوری ما ونیل چې دا سړے څه بدل شوے دے. خو چې څه چل دے. څه خبر وم چې د هغه بله خور پیدا شوې ده.
ګلون: بس که خور هغه خو فرښته ده، ته په ملائیکې پورې دروغ وائې.
نګهت: (په چغه) ګلون! ښځه هرڅه وری خو د خاوند بله ښځه نه وری او نه منی.
ګلون: نو تا خو اوس مورآبی ته وے چې زوی ته دې اووایه چې بله ښځه اوکړی دا زه درته بده ښکاریږم.
نګهت: ته نې خوښه نه نې څکه مې ورته ونیل.
ګلون: شکر دے چې ته د خپل خاوند خوښه نې نو...
نګهت: او کنه زما د خاوند زه ډېره خوښه یمه، زه ستا په

شان سخا پسخا او بېکاره يم څه!

ګلون: نو تا خو اوس ونيل چې هېڅو بنه راته نه ګوري.

نګهت: خواري خوشکې تا دا دومره خبرې د چا نه زده کړې دي، اودرېږه چې دا سنړې درنه اوباسم. روغه موتېه به شي.

نازو: مکوه بي بي! دا څه کوې؟ ناجوړه ښځه ده؟ او په غېږ کښې نې ورره وړه لور ده، هېڅو ترس دې نه راځي؟.

نګهت: مېږېزې دا خو ستا کارونه دي اودرېږه چې تا مخکښې نيمه کړم نو.

نازو: زه خو مزدوره يم. هرڅه چې کوې ليکن هغه خو د کور مېرمن ده!

نګهت: هن! د کور مېرمن! د څه شي مېرمن؟

نازو: د خپل خاوند ښځه او بيا ستا مشره يور ده دومره رحم دريکښې نشته؟

نګهت: اودرېږه ته، رحم به درته اوس اوښايم

(نګهت د يو بلا په شان په ګلون رامنډه کړه. مور آبې ولاړه ده او ښه ورته پته ده، چې ګناه چاته ده. خو د هغې هم قدرت په زړه جرنډې وهلي دي او دا سې سنګين زړه نې ورله ورکړې دې. چې د بل هېچا هم نشته. خدائے خبر چې فرشته صفت ګلون نې ولې د سر دشمنه ده او بدخويه نګهت نې د زړه آرام او خوشحالي ده. دې ګلون د ځنړو نه اونيوله. خوا ته نې واله بهېرې، دواړه يورانے په جنګ شوې او وړوکې تسينم ولې ته

ارتاو شوه. هډو د چا خیال ورته اونه شو، خوابني، انګور په دوه تنه ناجوړه بې ګناه ګلون داسې اووهله، چې بې خانه په زمکه پرېوته. جنګ خور شو، نګهت څادر په سر د کور نه اووتله او د پلار د کور مخه ئې اونیوه.

نازو: هلئ هغه تسنیم بی بی څه شوه، هغه خو نشته.

ګلون: (د غریو ډکه واني) نازو پریږده چې چرته مړه شي، که ددې زما په شان قسمت وی، خو مرګ ورله پکار دے.

نازو: خدائے دې نه کړی بی بی. ستا خو دا یوه لور په سترګو کښې نه غړېږی نور څه دی؟

ګلون: ښه ده چې زوی مې نه دے شوے

نازو: کنه خلقو به وژلې وې.

ګلون: ... شه جوړ تسنیم ولې ته پرېوتلې وه.

نازو: د کور نه ... رقه واله په مخه رواخیسته او د کلی نه لرې بهر یو جاخ ته رااورسېده. څه ګوری چې وړوکې تسنیم د خندا ډکه خوله جاخ ته انبنتی ده او خپل دواړه واړه لاسونه ئې په دعاء د خپلې ... پد حق کښې اوچت کړی دی. نازو په منډه تسنیم راواخیسته او ... ئې:

نازو: هله بی بی اوحسده ... ښکلې بی بی ده! مور دې جوړه ده سر ئې نه دے مات شوے. لیکن نه ئې مور جوړه وه او نه تسنیم اوخندل. ولې چې په ډکه واله کښې دومره اوږده بهېدلې وړه جینئ څنګه ژوندئ پاتې کېدے شی؟ نازو مړه لور په وینو کښې پرتې مور ته په خوا کښې اوغورځوله او په ژړا

شوه.

ګلون: خير دے نازو څه چل دے؟

نازو: هيڅ چل نشته بی بی خو، بی بی خو...

ګلون: هن! تسنيم مړه ده؟

نازو: او بی بی تسنيم په واله کښې مړه ده.

ګلون: شکر دے خدايه دا دې رابانديې ډېر لوئی رحم اوکه، ددې آفت نه خو دې دمه کړم. ما غريبې په دنيا کښې څه خوشحالی ليدلې وه چې لا دا دې هم پيدا کړې وه، خدايه ډېر ښه دې اوکړل، ډېر ښه دې اوکړل.

نازو: بی بی دا ته څه وائې؟ په خپل اولاد خوشحاليږې؟

ګلون: د اولاد سخته ليدل نازو ډېر ګران کار دے. مرګ ئې پرده ښه ده. د خلقو د نظر نه خو به اوخم کنه.

ناڅاپه د ګلونو د سترګو نه غبرګې اوښکې روانې شوې. په سپين مرمری او ښکلی مخ ئې دا اوښکې داسې ځلېدې لکه چې د شيشې په ګلاس بهر طرف ته اوبه روانې وی. مجال ئې څه و چې په زوره ئې ژړلی وے. تر ډېره وخته پورې غريو نيولې وه، مری به ئې لمده شوه. زړه به ئې ډك شو، چې چغه اوباسی. او په زوره اوژاړی. خو څوك به ئې فرياد واوری او څوك به ورسره اوژاړی. ټول خلق د مور آبی د وېرې چپ ولاړ دی. يوه شپېه اوشوه، يو بدقسمتې مور. يو بدنصيبې اينګور په خپل حال پټ پټ د ځان سره ډېر اوژړل، چې يا خدايه دا څه آفت دې په ما نازل کړے دے د سرنه مې وينې بهيږی. سترګې

مې ژاړي، د سر وينښته رانه ولې يوړل. پښتې مې ماتې دي او پنډۍ مې دردونه کوي. چاته اوژاړم. چاته فرياد اوکړم؟ هېڅوك مې په غم شريك نشته ناڅاپي مور آبۍ راغله.

مورآبۍ: د مېراتي لوري زما اينګور دې د کور نه اوشړله؟

ګلون: ابۍ تسنيم مړه شوه!

مورآبۍ: ډېر ښه اوشو چې ته ورسره مړه وې نو!

ګلون: ډېر ښه به شوی وو که مړه وې نو.

مورآبۍ: زما سره خوله مه کږوه سپۍ! خو اوس به مې زامنو له جواب څوك ورکوی؟ چې ښځه څه شوه.

ګلون: مورآبۍ زما څه خطاء ده، وهلې ټپي زه يم. لور هم زما مړه ده. ناجوړه هم زه يم او د کوره هغه وتلې ده. ددې به زه څه جواب ورکړم. خو قدرت ستاسو مجرمه کړې يم. چې څه کوئ ستاسو اختيار دے.

مورآبۍ: په دې خبرو نه خلاصېږې. دا د خاندان بې عزتی دې زما په خيال ډېره خوبنه ده

ګلون: مورآبۍ! زه خو ستا لور يم. زه به څنګ د خندان بې عزتی برداشت کړم. خو هغه په خپله...

مورآبۍ: چپ شه د متيزې لورې! زما د حيا ډکه اينګور دې بې حيا کړه. نه پوهېږم چې څه چل دې پرې کړے دے. خاوند ورته نه ګوری هر وخت وريورې اينښتے وی. خو واوره ته به اوس هم په دې ساعت د خپل سپی قباد کره ځې، چې

زما کشره اېنګور په کور نه وی. نو ته به هم نه نې. قباد خو ستا ډېر عزت کوی، خو د بل په کور ګورم کنه چې تاته ګوری او کنه! اوس دې دے تا اوساتی. شابه پاڅه ځادر پسر کړه او دکوره رخصتېږه.

ګلون: مورآبۍ ته زما مور ئې. زه به په دې حال ځنګه د هغه کره لاړه شم؟

مورآبۍ: هرځنګه چې وی خو خې به پرېږدم دې نه!

ګلون: زمونږ په خاندان کښې تراوسه څوك د كور نه وتلې نه دی. نو زه به څنګه اوځمه؟ هرڅه چې راسره کوې. دلته ب کوې او زه د کوره اوځم نه. مړه مې کړه مورآبۍ! چې ددې ژوند نه خلاصه شم. خو د خپل خاندان بې عزتی نه شم کولے

مورآبۍ: هن! خون زه په غاړه کړم؟ زه دې مړه کړم؟ زه درته وایم چې زوے مې خبر نه شی کنه رشتیا به دې په ټوپك اوولی.

ګلون: ټوپك نه په توپ کښې به واولوزم خو د کور دا عزت به انشاء الله تعالی په خپلو وينو ټينګ کړم او د خپل پلار او ورور عزت به هېڅکله خراب نه کړم

مورآبۍ: ښه دا اوس سه ماته قبادے او کاوسے ښئېږې؟ زه د قبادی او کوسی څه پرواه ساتم. زما خو داسې زامن دی چې زمری دی زمری. د قباد څه مجال دے چې ستا کته به اوکړی او ددې خبرې سره بیا مورآبۍ لوږ په لاس اودرېدله او يو څو ګذاره نې په مړه سپیٔ لکه ډېران په سر اوکړل. نه د هغې طرفه

ګـذار و. نـه خبـره، سـتړي شـوه قـلاره شـوه، نـازو غريبـه چـې
تراوسـه غلـې ناسـته خانلـه نـې اوښـکې تويـولې د بـې بـې خوالـه
راغله.

**نـازو:** بـې بـې! مورآبـې نـن ډېره قـار ده، کـه دې خوښـه وی نـو
چې د قباد خان کره څو.

**ګلون:** نازو! څنګه به لاړه شم، دا کور څنګه سرتور پرېږدم.

**نـازو:** دا څـه کـور خـو نـه دے ګـور دے، تـه پـه دې کښـې هـم
عمر تېروې، هرڅه چې کېږي. خو څه چې څو.

**ګلـون:** تـه ناپوهـه نـې نـازو! زمـا د کـوره وتـل دی او اوس بـه
مورآبـې خپـل زامـن خبـر کـړی چـې دا د کـوره اووتلـه، غلـې خـو پـه
دې ده چـې کشـره اينګـور نـې خوښـه ده او هغـه د کـوره وتلـې ده.
زما راز به هيڅکله پټ نه ساتی.

**نازو:** نه دې ساتی خانان به پخپله يوه ورځ خبر شی.

**ګلـون:** کـه خبـر شـی نـو څـه بـه اوکـړی، زمـا د خاونـد غـوږونـه
خـو مـور داسـې ډك کـړی دی چـې لېونـے کـړے نـې دے. پـاتې
اصـغرخان شـو. کـه اوس هغـه سـره خبـرې کـوم، نـو هـم راباندې
نګهـت او هـم مـور نـې اعتـراض کـوی او بـدنامی راباندې تـړی.
خدايـه زمـا توبـه ده، خدايـه چـې دا څنګـه مـور ده ددې خـو زړه پـه
سـينه کښـې نشـته. ګټـه ده. زمونـږ دا قسـمت و. ځـوك مـزې
کوی او ځوك په وينو کښې رغړی رارغړی.

**نـازو:** هلئـے بـې بـې! سـتا خـو د سر نـه داسـې ويـنې بهيـږی. سر
دې مات شوے دے.

ګلون: ماتېږي به نازو څه پرې اوکړم.

نازو: کـه دې خوښـه وی چـې ، سنیم پـه اورنـړی نـې درلـه اوتړم.

ګلون: ښـه ده کـنه سـر حـو بـه رالـه اوتـړې خـو دا نـور زخمونـه به څه کوې؟

نازو: دا وینه به بنده کړو نور به خدائے ته حواله کړو.

ګلون: (ډېره ښـه ده نـازو! ونـې تـړه) نـازو یـوه خبـره درتـه کـوم، زمـا پـه دې دنیـا کښـې سـتا نـه سـېوا هېڅوك پـه غـم شـریك نشـته دے. هسـې نـه چـې زمـا پـه سـر درتـه غـاو جـوړ سـی ، ما د کمّرې نه اوخه! اوس به مورآبۍ راشی او دا کمڅئ به درنه اوباسی!

نـازو: زه خـو نـې هغـه بلـه ورځ رخصـت کـړې وم، خـو سـتا دپاره پـاتې شـوم، پـه دې نوکونـو بـا مـې مېخونـه ټـك وهـی، وبـه نه وځم، که ته څې، نو ستا سره به که څېر وی لاړه شم.

د ماښـام وخـت دے، تـوره تیـاره شـروع کېـدونکې ده، د ګلـون کـټ کښـې یـو سـخا پـوزے پـروت دے یو یخـه یخـه هـوا الـوځی، ددې زخمونـو نـه نـرئ نـرئ وینـه څـاڅ، خـو خاموشـه ده بالکـل غـږ نـه کـوی. هسـې نـه چـې شـر تربـنـه جـوړ شـی، نـو غـریبې هسـې پـه زړه او پـه خـولې جرنـدې وهلـی دی. څـه چـې ددې پـه قسـمت وی هغـه بـه وررسـی. اشـرف خـان د ښکـار نـه راغـے. ټوپـك نـې پـه لاس دے او غـټ بوټـان نـې پـه پښـو دی، مورآبـی سـره څمڅـئ پـه لاس ده پـه زوره زوره خبـرې کـوی او د کنځلـو خـتم نـې شـروع کـړے دے.

کار کوي.

مورآبۍ: ولې به قار نه يم، چې...

اشرف خان: نګهت څه شوه؟

مورآبۍ: دلته به چرته ناسته وی نو...

اشرف خان: نو ته پخپله بيا ښه کار کوې، ورشه نګهت ته اواز اوکړه.

مورآبۍ: نه شم! اوس مې پخپله شروع کړې ده په خپله به نې کوم.

اشرف خان په زوره زوره دا مې آواز اوکړ:

نګهت، نګهت اے نګهت لیکن چا بدلې آواز ورنه کړ. هلته غريبه زخمې ګلون د يرې د کټ لاندې وتله چې يا لويه خدايه څه چل به کيږی.

مورآبۍ: اوس نعرې مه وهه وتلے ښکار بيا په لاس نه راځی.

اشرف: مور ته په ډاګه خبرې ولې نه کوې؟

مور: زه به څه وايم بچيه! ستا به دا قسمت وو، زما خو ستا ښځې ته ډېره طمعه وه خو...

اشرف: آخر چل څه دے؟ رښتيا حال اووايه، چې زه خو خبر شم، چا جنګ کړے دے څه؟

مورآبۍ: دا مې ارمان دے چې خان له دې بل واده اوکړې

نو...

اشرف: (په زوره) ګلون یا ګلون. څه شوه دا د خر لور چرته پټه شوې ده دا نوره نه قلارېږي، ودرېږه چې سینه ئې په ټوپك سورۍ کړم، چې سړه شي، څه شوه ګلون!

مورآبي: اوس سوړ شه دا هرڅه په وخت کېږي، وخت د سره چې سړے څوك په لاړې نه کړي، نو وروستو نه په لاړ کېږي.

اشرف خان ناخبره د غصې نه ډك و، راغے او ګلون غریبه ئې د کټ د لاندې نه راواښکله. یو څو کونداغونه ئې ورله په ملا رارتاو کړه او یو څو لتې ئې اووهله: د بې باکه لور چې په دې خاندان کښې دې ګذاره نه کېږي، نو څه کنه د خپل بې غېرته قباد کره ولې نه ځې؟ ګورې چې د ډوډۍ خانے دې پکښې نشته کنه؟ شابه تیارېږه نور دې په دې کور کښې ځائے نشته، او که چرې بیا دې ددې کور نوم په خوله واخیست. نو په مرګ به دې سړه کړم.

اشرف خان د ډېرو کنځلو وهلو نه پس باهر راووت. حجرې ته د قهره ډك راغلے و. "هلکه یارے ماما شته کنه؟"

یارے: او جي او جي زه ناست یم.

اشرف: څه ورځه دغه د سپي لور د قباد خنزیر کره بوځه او ورته وایه چې دا خور دې سمبال کړه. که بیا په دې طرف ستاسو د کور څوك ښکاره شو. نو غار غار به ئې کړم.

یارے ماما دروازې له راغے او مورابي ګلون د پرهرونو ډکه

وړې تربې د کوره په تورمابنام پیدل رخصت کړه.

ګلون: ماما ته ولاړ نې خه چې خو.

یـارے: څـه دی بچـی سـتا خـو آواز څـه نـاجوړه غونـدې معلومېږی.

ګلـون: ماما تـه ماتـه د خپـل پـلار غونـدې ښکـارې، هېڅ چل نشـته دے. دا خـو کـور دے نـو داسـې واقعـات پکښـې راځـی، نـو خان قار دے انشاء الله تعالی سبا به بیا خوشحاله شی.

یارے: ماته هرڅه معلوم دی بی بی، زه د ټولو نه خبر یم.

ګلـون: نـه مامـا تاتـه بـه چـا دروغ ونیلـی وی. قصـور زمـا وو مـا غلطـه خبـره کـړې وه. خـدائے دې زمـا دا ژبـه چـاړې کـړی. داسـې بـې واکـه ده وئ پـه سـر کښـې مـې سـړیکه شـوه، وئ پښـه مـې ماتـه شـوه. مامـا دا تـول زمـا خپـل عمـل دے، چـې ماتـه رارسېږی. کنـه مـور آبـې هـم ډېـره ښـه ښځـه ده او د نګهـت سـره هم ګـوزاره کېـږی، خـو کـه زمـا دا ژبـه مېراتـه بنـده وے، نـو هرڅه به روغ رمټ وو.

یـارے: افسـوس پـه دې خبـره دے چـې هرڅـه پـه تـا تېرېږی او ستا ژبه بنده ده هېڅ نه وائی.

ګلـون: مامـا ژبـه کلـه بـده ده قسـمت بنـد دے، وئ رایـاد شـو هغه وړه جینئ خو رانه پاتې شوه. خو څه وی به نو.

یـارے: نـه بـی بـی چـې ورشـم او رائـې ورم تـه دا خائے کښـې لږ تیکاو شه.

ګلـون: څـه بـه راوړې مامـا د مـړو او د ژونـدو ګـذاره نـه

کېږي، هغه خو مړه ده تراوسه پورې چا دا غږ نه و کړې چې تسنیم اوسپاری، ښه ده دا به د خدائے خوښه وی.

یارے: ولې بی بی وړه تسنیم په حق رسیدلې ده؟

ګلون: او ماما سحر زمونږ په جنګ کښې زما د لاس نه ولې ته اوخوېدله او بیا زه هډو خبر شوے نه یم. نازو راله مړه تسنیم راوړه.

یارے: د غټو خلقو غټ زړونه وی بی بی تا د خاندان د عزت دپاره خومره غټه قربانی ورکړه.

ګلون: ماما! ما هېڅ قربانی نه ده کړې زما خپل تقدیر داسې دے، وئ خدایه مړه شومه دا پښې مې هډو خې نه، دا ملا مې د ېره درد کوی.

یارے: ګلون ته زما لور نې او زه دې پلار یم کنه؟

ګلون: ماما زه هېچا ته پلار او مور نه شم وئیلے.

یارے: ولې بی بی.

ګلون: زما داسې نصیب دے که چاته مې خپل اووے نو هغه به تالاو ورک شی.

یارے: پرېږده دا خبرې خو زما دا څادر واخله او خپل ځان تول اوتړه.

ګلون: څه یوځاے نه دے ماما چې زه نې وتړم.

یارے: څادر به درله زه رېښې رېښې کړم او چې څومره دې پکارېږی په هغې تړل کوه.

دوی پوره لاړ وهلې وه، ستورى ښکاربدل بى بى خپل
ښکاره ښکاره زخمونه د خپل نوكر چې پلار ئې ورته ويلى وو.
په څادر اوترل او بيا روان شول. د چرګو د بانګ وخت و، دوى
د قباد خان كلى ته اورسېدل. يارے ماما مخكښې او ګلون بى
بى پرې ورپسې ده. په حجره كښې يارى ماما تپوس اوكړ.
هلكه څوكيدار څوك شته كنه؟ څوك ئې تورګل نې كه؟
يارے: تورګله ياره پاڅه كنه بى بى راغلې ده؟
تورګل: هلكه ياريه! ته په دا وخت څه كوې؟ ښه ده چې
راغلې ډېره موده پس مې اوليدې. دا په تا څه شوى دى. څادر
دررسه نشته او ته خو پوره بوډا شوے ئې. اوس زوړ شوې ښه،
د خوانۍ هغه مزه دې وركه شوه.
يارے: پرېږده تورګله! دا د خبرو وخت نه دے. دروازه
اوډبوه چې څوك بهر راشى.
تورګل: خير دے څوك مړه خو نه دى؟
يارے: نه نه بالكل خير دے، خو زه او ګلون بى بى راغلى
يو.
تورګل: شكر دے شكر دے بى بى راغله، ډېره ښه ښخه ده
ياريه زمونږ په مخكښې وړه لويه شوې ده. اوس اوس مې د
هغې هغه نيك او ښه كارونه په سر كښې پراته دى. خوشحاله
به وى كنه اوربدلى مې دى چې لور ئې هم شوې ده زه اوس به
ئې لور قلارډ ووكنه!
يارے: خامخا وخت ضائع كوې كنه، ورشه تادى اوكړه.

تورکل ور اوډېـه وه مـزدوره رابهـر شـوه، د بـی بـی سـره نـې سترګې اولګېدلې او په منډه کور ته لاړه.

مـزدوره: کالـه کـوره پـاڅئ ګلـون بـی بـی راغلـې ده. هلـه تـادی کـوئ، ګلـون د زخمونـو نـه چـور چـور ده، خپـل کـور تـه لاړه. چـې تیـاره خـوره شـوه او رڼـا شـوه، نـو ټـول خلـق راغونـډ شـول او مـور نـې پـه کـټ کښېـې پرتـه پـه سـوچ شـوه.- خدایـه خیـر څـه چـل اوشـو چـې پـه دې وخـت ناڅـاپي مـې لـور راغلـه. هلئـے زمـا د خـوارې خدایه دا څه وشو؟

خـوابنې بـلا بـه ورسـره بیـا جـنـګ کـړے وی، یـو نـې زوی یـو آفت دے، د سـیلاب لـور ده چـې کـوم طـرف تـه نـې فکـر شـی نـو هغـه لکـه د هـرګلئ تالـه تـرغم کـړی، خدایـه خیـر چـې ګلـون پـه دې وخت څله راغلـه- نـازړه غونـډې د دکـټ نـه راپورتـه شـوه، غـږ نـې اوکړ.

روزون: ګلون یا ګلون! ستا نه زار شم خیر دے؟

**ګلون:** او آبی خیر دے راغلم نو...

روزون: پـه دې وخـت او ناڅـاپي سـتا د راتلـو څـه وجـه ده. ورور خو دې دریسې هم څوك نه دی درلیږلی.

**ګلون:** خو بس زړه مې رامات شو نو راغلم.

روزون: بـد دې اوکـړه بچـئ معلومېـږی داسـې چـې د خـوابنې نه بې رضا راغلې ئې.

**ګلون:** نه آبی مور آبی خو ډېر په خوشحالی اجازت راکړ.

روزون: نو بیا به د خاوند نه پټه راغلې ئې؟

ګلـون: نـه هغـه هـم رخصـت راکـړ، او يـارے مامـا نـې راسـره رااولېږلو.

روزون: تسنيم كوم خائے ده اوده ده كه؟

د نســميم د نـوم اوربـدو سـره ګلـون غريـو اونيولـه او مـور تـه ورترغـاړه وتلـه، مـور نـې جوخته پـه خـوا پـورې اونيـوه او سـلګۍ نـې اووهلـې "زمـا د غريبـۍ خدايـه زمـا قسـمت دې ولـې داسـې کـړے دے، اخـر پـه دومـره خلقـو کښـې دا کـور يـوازې زماپـه قسمت کښې ليك وه".

روزون: بچۍ دا خو تپوله ترلې ترلې نې څه چل دے.

ګلـون خپـل ټـول حـالات وربيـان کـړل، ورنـدار او مـور نـې پـه ژړـو ژړـو اوژړل، قبـاد خـان نـې څنګ لـه راغـے او پـه ښائيسـته مـخ نې يو څو اوښکې توئي شوې.

قبـاد: خور خفـه کېـږه مـه دا بـه ستا نصيب و كنـه. زمـا تـره خو ډېر زيات ستا په ورکولو خوشحاله و.

ګلـون: نـه وروره د چـا قصـور نـه دےنـو د چانـه بـه خفـه شـم، د خپل خدائے نه ګيله نه شم کولے او بل څوك د ګيلې نشته.

قبـاد: هغـه کـور او دا سـتا يـو شـان کورونـه دي، چـې مونـږ لـه خـدائے پـاك خـوراك لـه څـه راکـوي، هغـه بـه تـه خـورې او زه څـه دومره كمزورے نـه يـم لكه چې اشرف خـان تـه ښکـاره شـوے يـم. تاتـه نـې څـادر پـه سـر كـړے دے او رارخصـت كـړې نـې، پـه سـترګو به دريسې ړوند شي او واپس به دې بونه ځي.

ګلــون: تــه زمــا ورور نــه نــې خــو ماتــه د پــلار پــه شــان

ښکارېږي، زه خپل ورور د خپل سر په ډنډه کښې نه منم، چې کله هغوی څوك رااولېږي، ورسره به ځم.

قباد: ګلون دا غلطه خبره ده، دواړه طرف ته ناکام پکار وی، د یو لاس نه پرق نه خېژی.

ګلون: د سترګو توره وروره هرڅه چې کېږی، خو د قسمت سره جنګ نه کېږی، زه به انشاء الله تعالی چې ډېر زر خپل کور ته واپس شم.

قباد: ته هم پاګله غونديې نې، هلته درته څوك د سپي په سترګه نه ګوری او ته هر وخت وائې زما کور دے او زما کور دےدا خو ګور دے، هلته به څوك لاړ شی.

ګلون: هم دغه کور زما په نصیب دے او زه به ورله ځم.

بیا ګلون د تسنیم قصه او د نکهت د وتلو واقعه خپل ورور ته هم بیان کړه. قباد خان د تسنیم په مرګ ډېر زیات خفه شو او آخر ئې خپلې خور له تسلی ورکړه. چې خفه کېږه مه بچې، ښاروی د هغه خلق مری چې د چا وی، چې نه وی نو څه به مړه شی.

ګلون: ماله ژړا په دې راځی چې ډېره په بې آرزئ کښې مړه شوه او لاګوره چې سپارلے به ئې وی او که نه؟

قباد خان: ولې مور آبې نه وه څه؟

ګلون: هرڅه ډېر وو او هرڅه وو، خو زما د لور دپاره پکښې هېڅ هم نه وو. قیامت و. قیامت. زما د راتلو پورې زما په خوا کښې پرته وه، بیا تري نه یم خبره شوې، چې څه چل

به شوی وی.

قباد: ته خفه کېږه مه، چې څه وو هغه رااوشو اوس څه! په زخمونو دې دارو اوتړه او خان ګرم کړه چې ښه شې، سبا به انشاءالله تعالی هرڅه ټیك ټاك کړو.

سحر وختی خلق راپاڅېدل، ګلون د سفر سترې ستومانه او د وهلو کنځلو زیلې لاد کټ نه پاڅېدلې نه وه، خلقو پرې هم خان نانګاره کړ، پرېږده چې پرته وی. غریبه ده. همزولې ورله پخبر له راغلې، لیکن اوسه پورې ورسره هېڅوك نه وو ملاو شوی. د کور خلقو چائې اوڅکله، مېلمنو ته ئې هم ورکړه، نمر ښه اوچت راغے او ګلون بی بی راپاڅېده، سترګې ئې اوغړولې، ګنړ خلق ئې د خان نه چاپېره اولیدل. د خپل خدائے شکر ئې اوویست، چې خدایه د څه زندان نه دې راخلاصه کړم. دا خو جت دے جنت، بختورو تاسو داسې په خوشحالو او آرام کښې یئ او زه مو دغې تنور ته غورځولې یم، زه به تاسو چرته هم اونه بښم. ناڅاپه نازو رامخامخ شوه.

ګلون: راځه نازوراځه څنګه راغلې؟

نازو: سحر مې خلقو ته چائے ورکړ او راپټه شوم.

ګلون: مور آبے ښه وه؟

نازو: ورکه که مور آبے ته لاد هغې تپوس کوې.

ګلون: نامردې! داسې قار شوې دا ولې؟

نازو: قارېږم به نه خان ته نه ګورې ستا سره ئې څه چل کړے دے، ته لاپه دې کښې هم د هغې تپوس کوې، چې مور

آبۍ څنګه ده؟ الله پاك دې اصغر خان له ډېر شته د حلالو ورکړي، چې په نيمه شپه کور ته راغے. تپوس ئې رانه اوکړ، ورندار څه شوه او تسنيم څنګه ده؟ ما ورته قصه بيان کړه. په غټو غټو ئې اوژړل او خپلې مور ته ئې بدې ردې هم ډېرې اوونيلې، چې دا دې څه چل اوکړ، خو مورآبۍ هغه شان توره بريخ کېده او ورته ئې اووې: مشر ورور دې غېرتی دی، په تا کښې هډو غېرت نشته. دغه دےستا د ښځې سره ئې جنګ وکړ او هغه ئې د پلار کره اوزغلوله، که په تا کښې غېرت وے، نو هډو د هغې نوم به دې په خولې نه وے اخيستلے. اصغر خان ورته نور هم ډېر بد رد وويل چې ته هم عجيبه مور ئې د خپلو زامنو شرم د خپله لاسه کوې دا د څه چل اوکړه. زما ښځه دې هم د کوره ووېستله او ورندار هم لاړه. د کلی خلق به څه وائی. د مور او د زوی جنګ تر ډېره وخته پورې و. بيا ئې خلق رااووېستل، قبر ئې اوکنسته او ډېر په عزت ئې تسنيم بی بی اوسپارله. مور آبۍ ته ئې وے داسې ډنډه دې اولړله چې سترمانه به شې، چې څه وخت تېر شو، نو د کوره دلګيره اووتلو.

ګلون: بيا ئې نور څه ونه وے؟ زما ورور ډېر ښه سړے دے، الله پاك دې ورله برکت ورکړي.

نازو: نور ئې هيڅ اونه وے. زما ورور ډېر ښه سړے دے، الله پاك دې ورله برکت ورکړي.

نازو: نور يې هيڅ اونه وے، خو پټ غونډې د خان سره لګيا و، چې زما ورور هم څه ته ګوری نه، خو د مور هره يوه

خبره منی. که ده ددې دومره نه اوربدلې، نو اوس به دا ډنډ
ولې جوړېده او زما بنځه به هم چرې وتلې نه وې. زه اوس
ورسره ګورم.

ګلون: خدائې دې خیر کړی، خان په رشتیا قار نه شی او د
نګهت خونی هم ناکاره دے څه شر جوړ نه شی!

نازو: زما هم دا خیال دے، چې هغه ډېر په بدو سترګو
وتلې وه خدائے دې خیر کړی.

دوئ دواړه بیا په څه خبرو مشغولې شوې او پټې پټې لګیا
وې.

ګلون: ډېر به قار و کنه اصغر خان نازو؟

نازو: داسې قار و، لکه د وریجو کټوئ، چې خوټ کېږی.

ګلون: او موراٰبی ورته د نګهت هېڅ هم اونه وئیل؟.

نازو: بغیر د بې غېرته نه ئې ورته هېڅ نه دی وئیلی.

ګلون: زما دې توبه شی داسې بنځه ب اوس چرته پیدا
کېږی، مونږ څه کړی په خپل اولاد ئې هم ترس او رحم نه راځی.

نازو: که په خپل اولاد ئې ترس وې، نو تسنیم بی بی به دې
یوې ورځې نه بلې ورځې ته ولې په کټ کښې مړه پاتې کېده.

ګلون: ورکه کړه تسنیم خو زما ورور اصغر ئې په جنګ
واړولو.

نازو: څه په جنګک، بی بی دا ته څه وائې؟.

ګلون: ته نه پوهېږې نازو، د پښتو خومره غلط او ناکاره

رواجونه دی او هغه ته پته لګېدلي ده، چې زما ښځه په خپله زما د کوره وتلې ده، خدائے دې ورته خير کړی، وړوکے هلك دے، چرته د کم عقلۍ نه کار وانخلی.

راځه نازو، ناوخته دے چې ډوډۍ اوخورو بيا به خبرې کوو، چې څه کېږی، هغه د قسمت کار دے.



# اسلم خان

ځانے لرې و او نګهت پیدل په لاره یواځې د پلار کره روانه وه، سترګې نې وچې کلکې وې، نه ورله ژړا ورتله او نه خفه وه. البته په سوچ کښې ضرور وه چې غلطی مې اوکړه، یور خو مې هډو څه ویلی نه وو او داسې په معمولی خبره د کوره رااووتلم، چوړ د شرم وخت مې راغے. الله دې زمونړ دا خوابنې مېراته کړی، که زه دے نازبینه نه وے عادت کړے. نو اوس به راته دا مشکلات نه وو. ګورم چې وروز اسلم خان به مې ملګرتیا اوکړی او که نه؟ هسې نه چې هغه مې هم د کوره اوباسی او راته اووائی چې دا د پښتو قول او وعده ده څه ورځه د خاوند کره، اوس به څنګ د خاوند کره ورشم. زه هم د پښتون پلار لور یم، څه جولهه خو نه یم چې کله به رااوځم او کله به بیا ورځم. خو که ورور مې راله ډاډ رانه کړ، نو بل خوا

به تري نه اوخم، ليکن د اصغرى کره خو به په قرآن پښه هم واپس نکړم. آخر زما لوظ او اراده خو څه معنى لرى. چې داسې خان پخپله سپك کړم، نو يور به مې رابانديې هر وخت ښځې کوزېږى او د خوابنې په نظر به هم سپکه او ورکه شم. هرڅه چې مې په قسمت وو، اوشول. ليکن بهرته به چرته هم د اصغر خان کره لاړه نه شم او ښخوالى به نې اونه کړم. په ما د چا زور دے څه؟. زه به په ډاګه اووايم چې زما دا خاوند زما نه دے خوښ نه نې اخلم، دا خو زما مرضى ده. دوى خوار و خوشکو ته اوګوره او د اسلم خان خور غوښتلو ته ګوره".

اسلم خان هم د خپل خور په شان بد دماغه او کنده ذهن سړے و، خوان و، د پلار ورته ډېر جائيداد پاتې شوے و. د خانۍ په نشه کښې مست وۀ. د مازيګر د چکر په وخت به پسې نولس شل غوګين روان و. د سپوږ ډکې پتې په غاړه وې او د نوکرانو لباس نې بلکل بدل و، د دنيا نور خلق ورته بالکل لکه د ماشى ښکاره کېدل او خپل تره نې ژوندے و. خو ده به ورته هډو کتل هم نه، چې دا څوك دے او څوك نه دے. بدمغزه دومره و، چې چا به ورته مخکښې خبره اوړه، نو بيا هډو د تپوس ماده پکښې نه وه. ماښام نزدې و نګهت ستړې ستومانه يك يواځې په تياره کښې کلى ته راننوتله. خلق حېران شو چې بغير د جواب نه نګهت بى بى څنګه دلته راغله. د کور په دروازه رادننه شوه او چغې نې کړې په زوره زوره نې ژړل چې تباه شوم. خلقو مې شرم اوکړه، خوابنې او يور راپسې کت يو کړه او د کوره نې راااوويستلم. لږ وخت پس اسلم خان کور ته

راغے، د خپلې مېلمنې خور نه خبر شوے و، کور ته راغے چې
تپوس اوکړی چې نګهت څنګه راغله.

اسلم: پخير خور بخير څنګه دلته راغلې، ما خو دريسې
څوك نه دی درلېږلی.

نګهت: خوږه وروره ستا نه قربان شم خلق رشتيا وايي که
چرګې ګرخې ګرخې خو خائے دې کنډول دے، آخر چې ردۍ
شوم، او خلقو ته بده ښکاره شوم، نو دا مې د راتلو خائے و.

اسلم خان: پوه نه شوم ستا څه مطلب دے؟

نګهت: اصغری د کوره رااووېستم.

اسلم: د اصغر څه مجال دے چې تا به د کوره راوباسي.
دے نه دے خبر چې ته د اسلم خان خور ئې.

نګهت: ښه مې ورته بار بار ووئيل چې خلقه ما د کوره م
اوباسئ، زه د خپل خاندان بې عزتی نه شم زغملے، ستاس
کورمه د وتلو عادت ده، خو زمونږ په خاندان کښې تراوس
څوك نه دی وتلی. اسلم خان چې ددې دا خبره واورېدله، نو
سترګې ئې ښکته شوې، څکه چې ده ته هغه زمانه رايا
شوه. کله چې دده مور هم داسې په خپله مرضۍ د کوره وتل
وه او بيا د شرم ډکه کور ته راغله. يو سوړ اسويلے اسلم خ
اوکړ، مرۍ ئې وچه شوه او د قاره سور شو.

اسلم: ګوره نګهت د هغوی هم ښه خانداني حيثيت د
که اوس چرې ګناه تاته وی نو بيا؟

نګهت: عجيبه خبره ده، زما پښې پولې شوی دی او خ

تـا بـه کـوزې سـترګې نیـولی وی، ولـې خلق بـه وائـی چـې د اسلم خـان خـور د بـل کالـه کـره ناسـته ده، سـتا څـنګ خوښـه ده کېـنـم کنه. صلاح راکړه او فیصله اوکړه څه چل اوکړم؟.

خور اسلم خـان پـه خبـرو خبـرو کښـې دوکـه کـړ او داسـې نې پـه جـذباتو کښـې راوسـتـه، چـې د قـاره نـې سـترګې تکـې سـرې شـوې، پـه خولـه ئـې لکـه د سـترې آس زګ اودرېـدو، پښـې نـې پـه رېږدو شوې او لګیا شو.

اسـلم خـان: زمـا دې پـه هغـه خـدائے قسـم وی چـې دا کـل جهـان ئـې پيـدا کـړے دے، اصـغرخان تـه نـه ئـې راويسـتلې، خـو زمـا بـې عزتـي نـې کـړې ده. کـه پـه مـا کښـې غيـرت وی او د عزتمنـد مـور و پـلار زوے يـم. نـو سـتا دا بـدل بـه واخلـم او تـه بـه دلتـه کښـې اوسـېږې. شـل اسـتازی بـه ئـې راشـی، خـو پـرې بـه دې ورسره نږدم.

د نګهـت پـه مـری کښـې لاړې راغلـې او لکـه د ګـل غونـدې تـازه شـوه او آخـر د خونـړی مـار پـه شـان نـې دوه خاندانونـه پـه جګـړه تيـار اوليـدل، نګهـت خـو پـه آرام د خـپلې ورنـداې سـره کېناسته.

ورنـدار ئـې ډېـره هوښيـاره او ښـه ښخـه وه، د ډوډۍ نـې ورلـه ښه انتظام اوکړو او چايې ئې کړه.

اسـلم خـان د قـاره ډك د کـوره اووتلـو، ورنـدار او نګهـت ناست دی، په خپل مېنځ کښې خبرې کوی.

نـوریٔ: خـور ډېـر بـد دې اوکـړه خپـل کـور څـوك د خپـل لاسـه نه ورانوی.

مـې تاتـه پـه منـډه او سـتا لمـنې تـه راغورځولے دے. اوس ستا اختيـار دے، د خانـدان دا پـې عزتـی بـه تـه پـه عـزت کښـې بدلـه وے. اصـغر ځـوك دے. چـې دې سـتا خـور د كـوره اوبـاس او كتـه وانـې نـو زه بـه اوس پـه دې سـاعت بيـا وررونـه شـم او د اصـغرى او اشـرفي پـه كـور كـې بـه كوزې سـترګې كېنـم، بيـا د هغـو اختيـار دے چې څه راسره کوی.

اسـلم خـان: زه حـيـران پـه دې يـم چـې اصـغرخان ډېـر ښـه سـړے دے.

نګهـت: يـواځې هغـه نـه مشـر ورور ئـې رابانـدې د لتـو غوبـل اوكـړ او مـور ئـې رابانـدې د سـوباړو يـو څـو ګذارونـه وكـړل. يـور مـې راځـخـه سـنړې پـه لخـتې كښـې پـاتې كـړې او تاتـه دروغ ښكاري.

اسلم خان: اخر تا قصور څه کړے و؟

نګهـت: څـه قصـور مـې كـړی و، خـو يـور مـې نـاجوړه پرتـه وه او مېلمانـه ګنـړ شـول. يـواځې وم كـار مـې سـر تـه اونـه رسـولے شـو. نو په ما ئې رابانديې کړل.

اسلم خان: ليکن د مېلمنو کار د کور د خلقو حق دے.

نګهت: دا زه ترته د چا د كور مزدوره ښكارم څه؟

اسـلم: چـې پـردی كـور تـه ښځـه لاړه شـی بيـا هـم هلتـه د غـسـې مزدوری کوی.

نګهـت: پوهـه شـوم کـه رابانـدې تـنـګ ئـې، نـو اوس پـه دې سـاعت بـه بـل چـا کـره لاړه شـم، خـو داصـغری ښځـوالی نـه كـوم او

نګهت: عجيبه خبرې کوې نورئ! په داسې کور تندر اولېږه.

نورئ: آخر که تا ته څه کم وي، نو ورور ته به دې جواب کړې وي او بيا زه هم دلته وم، هم دې ورندار يم او هم دې د تره لور سره خپلې خوېندې يو. نو ما به درته هرڅه درلېږلي وي، دا ستا خپل کور دې.

نګهت: ته نه پوهېږې خور يو ټول چې سرې چاته اوږه ښکته کړي، نو بيا پرې دا ټول خلق سوربړي.

نورئ: د پلار په کور چې سړې هرڅه کوي نو خوند کوي، ليکن د خاوند په کور خو د سړي اختيار وي چې هغه څه وائي نو ښځه هغه مني.

نګهت: دا ولې دا ښځې په څه ګنهګارې وي چې سړی به هرڅه وائي او دوی به هرڅه مني.

نورئ: بختورې داسې خبې کوې که ټولې دا ښځې ستا په شان شي نو بيا.

نګهت: زه به داسې ښځو له مبارکي ورکړم او پوهه به شم چې اوس د پښتنو ښځې د کار کولو او بدل اخيستلو قابلې شوې د دې پښتنو رواج خو هسې زمونږ نه قيدياني جوړې کړې دي.

نورئ: خو هر سړې دې په ځان راولی نو؟

نګهت: زه څه يواځې د ځان دپاره نه وايم، خو د ټولو دپاره داسې کار پکار دې.

نوريځ: نو ښه خور خفه کېږه مه، درځخه يو سوال کوم اوبه منې؟

نګهت : شل خو اوکړه.

نوريځ: چې رشتيا رابانديې وائې، نو ستاسو په دې کور کښې خو به سيے هم مېشته اونه کړی او ستا خو دېر ښه کور دے، داسې مره يور دې ده چې ته څه وائې هغه منې.

نګهت: ښه ښه ورندار اوس ته هم په داسې خبرو رااوښيتې، ستا به څه مجال وی چې زما د ورور بې عزتی به اوکړې او د کوره به اوخې.

نوريځ: ولې خور زه درته د پښتون لور نه ښکارم څه؟

نګهت: خان ته سرې اوبه واچوه، که ته د بادشاه لور ئې خو زما د ورور ښځه ئې.

نوريځ: هئ توبه شه! خو زه تاته ستا د ګټې خبره کوم، چې خپل کور دې په خپل لاس کښې واخله، ستا په کور کښې به د بل سړی بره او ستا لره وی.

نګهت: د چا مجال څه دے، چې زما په کور کښې به واك اولری.

نوريځ: يه خور زه خو د هغه کور وايم دا خو هډو څه سوال نه پيدا کېږی. دا خو ستا د خپل پلار او د ورور کور دے، ليکن ښځه چې واده شی نو د هغې دپاره بيا د خاوند کور خپل کور وی، نه چې د پلار کور.

نګهت: بس کـه ورنـدار پـه پرهرونـو راتـه مالګـه مـه دوړه وه، څه چرتـه اوده کېـږم! سـتړے سـتومانه يـم، تـه راتـه سـورنے غـړوې. زه څه د جولالـور نـه يـم پښتنـه يـم پښتنـه، دا خپـل بـدل بـه خامخا اخلم، کـه د ورور نـه مـې اونـه شـوه، نـو پـه خز نـو بـه دا خپـل بـدل واخلم.

تـورئ ترېنـه لاړه او نګهت ښـۀ پـه آرام پـه خپـل سـم کـړی کـټ کښـې څملاسـته، ښـه خـوب نـې اوکـړه، سـحر شـو ورنـدار ورلـه د ناشـتې ډېـر ښـۀ انتظـام کـړےو، ځکـه چـې مبلمنـه وه، دې چـاے ځکله، چا ور وړبولو، د خانانو نائی له چائے راوباسي.

د نګهت پـه مـرئ کښـې چـاے ونښتلـه او مـرئ نـې وچـه شـوه. جينئ ځوك دے او کوم نائی دے.

مزدوره: بی بی ستاسو نائی دے انځر ماما!

نګهـت: ورشــه! انځــر مامــا تــه اووايــه چــې ډيــوډئ لــه دې راشي، دلته به چاے اوڅکی او زما ورسره کار دے.

(مزدوره لاړه او انځـر مامـا نـې مـانړئ تـه راوسـتلو. څـه ګـوری چې يو دوه پلـی کټکـی پراتـه دی، پـه يـو تـولانی خـوره ده او بـل هسـې دے. مـزدوره لاړه او بـی بـی تـه نـې ووې چـې انځـر مامـا راغـے. نګهت بی بی پـه منـډه منـډه پـه پـردی سـرې پسـې راووتلـه، انځر ماما وارخطاء سپك تك زېر په مانړئ کښې ولاړ دے)

نګهـت: مامـا پخيـر پخيـر ډېـر وختـی نـه دے. دې کټکـی تـه کېنه.

انځـر: څـه مـې کـړےوے، مورآبـی راتـه اووې چـې وختـی بـه

خي.

نګهت: بنه ته مورآبې رالېږلې ئې څه وائي.

انځر: دعـاء سـلام ئـې کولـو او وے ئـې چـې مشـر خـان ګلون ډېـره وهلـې ده او پـلار کـره ئـې لـېـږلي ده اوس اصـغرخان هـم ډېر قـار دے او کـه دا خفـه کـېږی نـه نـو سـتا سـره دې راروانـه شـی او راخی دې. چې نور څه شر جوړ نه شی.

نګهت: پرېـږده ماما چې جوړ شـی، دوی چې څه کـوی، هغه دې اوکـړی. سـړی چې د بـل سـپېره نـه وی لیـدلې. نـو خپلـه ورته ګرز ښکاری.

انځـر: ګـوره بـی بـی دا خانـدان د پښتنـو پـه دور کښـې ښه باعزتـه خانـدان پـاتې شـوے دے. اوسـه پـورې دا هېڅکلـه نـه دی شوی چې څوك مېرمن خاذر په سر کړی او د کوره اوځی.

نګهـت: دا سـخا مـخ دې ورك شـه، تـه هـم لا دا خبـرې کـوې د په ټولو کښې ناکاره درته زه ښکارم؟

انځـر: نـه بـی بـی کـه تـه ناکـاره وې نـو د اصـغرخان ښځه به ولـې وے. دا خـو وختونـه دی خـی راځـی. کلـه ناکلـه د سـړی نـه غلطی هـم کـېږی. خـو سـړی لـه پکـار وی چـې زر پـه خپلـه غلطۍ ستومانه شی.

نګهـت: ډا بـه ستاسـو رواج وی، زمونـږ نـه دے، څـوك چـې: کـوره اوځـی هغـه بيـا نـه راځـی. زه يـو وار وتلـې يـم او پـه ژوندانه څه. چې په مرګ به هم لاړه نه شم.

رانځـر ماما تـش لاس د نګهـت نـه ناامېـده راروان شـو. ناڅاپه

حجري ته په دغه وخت اسلم خان راغې.)

**اسلم خان**: انځره څه دی، چرته راغلي وې، څه وخت راغلې وې.

**انځر**: خان صیب سلام علیکم دلته کښې راغلې وم، اوس سحر راورسېدم، ستاسو سره مې کار و.

**اسلم**: ښه ښه! پوه شوم زما په خور پسې راغلې ئې.

**انځر**: او جی مور آبی رااولېږلم، چې راځی دې اوس په کور کښې هېڅ شر شدت نشته اشرف خان ګلون بی بی د پلار کره اولېږله.

**اسلم خان**: انځره! نګهت زما خور ده، دا د قباد خور نه ده چې کله د دوی رضا وی نو د کوره به نې شړی او چې کله د دوی مرضی وی نو بېرته به نې راولی. دا اوس نه شی تلې.

**انځر**: ستاسو خوښه ده خان! زمونږ خو سوال جواب رسول دی.

**اسلم**: ما درته اووې څه اشرفی او اصغری ته اووایه چې څه کولې شی نو کوی دې دوی ته اجازت دې.

(انځر ماما را رخصت شو. قضا ماسپښین کلی ته رااورسېده، اشرف خان په حجره کښې نه و او اصغرخان وچې شونډې خفه درمانده په کټ کښې ناست و. څه سوچ کوی چې څه اوشو او څه به کېږی.)

**اصغرخان**: ماما راغه تلې وې کنه؟

**انځر**: او جی تلې وم.

اصغر خان: اوس په دې ساعت راغلې.

انځر: بس اوس رااورسېدم.

اصغرخان: اسلم خان څه وے، نګهت رانغله.

انځر: اسلم خان هم بد بد و، او نګهت هم خفه وه، خو خير دے دا لا جنګ اول خل دے، ښه به شي خانه. صبر پکار دے. هرڅه په صبر کېږي، تادی ښه شے نه دے.

اصغرخان: او ماما غير د صبر نه کار نه کېږي. آخر صبر مو لاړ ده، خو مور مې ښه نه دی کړې، څه ماما ته څه کور ته څه سترے به ئې.

(انځر ماما سترے و، کور ته لاړ او اصغرخان په کټ کښې لکه د تپې بې مريض غوندې وارخطاء څملاستو. کله به کېناسته، کله به ولاړ شو، آخر سوچ ئې ختم شو او تهيك ئې رااخيست چې خان اوولم ليکن دا ورته بده خبره ښکاره شوه چې ولې خان مړ کړي اول هغه څوك وژل پکار دی چې څوك بد کاری کو. زړه مې غواړی چې دا خپله مور هم يو دوه ډزه اوولم، ليکن دا ورته هم بيا بده خبره ښکاره شوه چې د دنيا خلق به څه وائي خلق به رابانديې الزام لګوی چې د ښځې دپاره ئې خپله مور اووېشتله. آخر د اسلم خان د کلي طرف ته روان شو، ډېر تېز او ګړندے راغې. ماسخوتن و، چې اصغرخان رااورسېده، اسلم خان ناست و. اصغرخان سلام واچولو.)

اسلم: خير دے اصغرخانه چرته راغلې؟

اصغرخان: د خپلې بې عزتۍ مرګ له پرېږده چې مړ شم.

اسلم: آخر تاته ولې بل سړے دومره سپك ښكارى.

اصغرخان: چه څوك سپك وى هغه نه درنېږى. اسلمه! دا څه سړيتوب خو نه دے، چې ته د خپلې خور خبره منې او د پښتونوالى نه خان اوباسې، پكار دا وه چې خور دې د اينخر ماما سره راغلے وے.

اسلم: دا څه د قباد خور نه ده چې ستاسو په رضا به خې راځى، دا زما خور ده.

اصغر: افسوس كه ستا خور د قباد د خور په شان وے او ته د قباد په شان وے نو ارمان به د څه و.

اسلم: خبردار ته زما بې عزتى كوې ما د هغه د سپى د زوى سره برابروې.

اصغرخان: ستا غوندې خلق د سپى زامن دى. دا هم څه غېرت دے چې سړے د ښځې خبره اورى.

اسلم: كه زما په حجره كښې نه وے نو اوس به مې خپله خور كونډه كړې وه.

اصغرخان: رامخكښې شه كنه تاته ولې ځان دومره غېرتى ښكارېږى. زه د پښتون پلار زوى يم، يا به خپله ښځه بوځم او يا به دلته سر پرېكړم، تش لاس به چرته هم نه ځم.

(د دوى مذكور ګرم شو، اسلم خان د خلقو په ګنړه كښې ناست و او په تېزه تېزه ئې خبرې كولې، ناڅاپه خپل يو نوكر ته ئې اووې د سپى زويه ته راته ولاړ ئې دا د مور خاوند دې دومره خبرې كوى او ته ورته څه نه وائې. وله ئې په ټوپك

باندي. اصغرخان هم قار و، پوه شو چې بيا وروسته لاتجي نه شم کولی، خپل بدل په وخت اخيستل په کار دی، ټوپک يې راواړولو، اسلم خان ئې رسا د زړه په سر اووېشتو. دوه درې نوکران ئې ورسره هم ملګرې کړل او په آخر کښې د شاه د طرف نه يو ډز شو چې اصغرخان يك يواځې د زمکې لور ته ارتاو شو، دا ګولی ئې رسا په سر لګېدلې وه. درې څلور منټه وروستو جګړه خوره شوه، پته اولګېده، اسلم خان سره د څلورو نوکرانو او اصغرخان ددې دنيا نه رخصت شول. په کلي کښې شور شو، چې دنيا ورانه شوله، نګهت بنه په آرام او په سره سينه د ورور د کټ خواله راغله او په ژړا شوله.)

نګهت: عزتمنده وروره! ستا د غېرت نه قربان شم، تا د خپلې خور دپاره خپل سر ورکړ، د وروڼو نوم دې ژوندے کړ، زما په شان خوېندې به په تا فخر کوی.

نورئ: بس که نور مخامخ مه اودرېږه، هسې زړه مې خرابېږي، څومره بې باکه او ناترسه ئې چې ورور دې په خپل جنګ کښې قربان کړ او خپل خاوند دې هم د تورو خاورو لاندې کړ.

نګهت: ته لاڅوك ئې چې دا خبرې کوې؟

نورئ: زه څوك يم، ته ما نه پېژنې. اوس دا وخت د خبرو نه دے غلې شه اوس به درته پته اولږي. چې زه څوك يم.

نګهت: ستا غوندې شل ښځې زه خاورو ته کوزولے شم.

نورئ: زه د ګلون په شان صابره نه يم زه به درسره هغه چل

اوکړم، چې چا کړے نه وی.

نګهت: دا زما د پلار کور دے، ستا نه دے خوارې.

نوریٔ: زما د پلار کور هم شته، خو دا زما د خاوند کور دے، متیزې څه د خپل کور تلاش کوه.

نګهت: د ورور سرته ولاړه یمه کنه نو...

نوریٔ: او کنه دا ستا هغه ورور دے چې تا مړ کړ.

نګهت: دې عزت مړ کړ، مانه دے او زه دده د عزت د وجې اوچته پاتې شوم.

نوریٔ: ورکه شه داسې سنګدله خور چې د خپل ورور په مرګ فخر کوی او د خپل خاوند په مرګ شکر اوباسی.

نګهت: ما درته یو وار ویلی دی چې دا زما د پلار کور دے.

نوریٔ: ستا د پلار کور هله و، چې مور و پلار او ورور دې ژوندی و، اوس کور زما دے، زما سره زما بچی اوسی

نګهت: ستا بچی خوك دی چې ماته به جواب راکړی؟ زه به تربنه سترګې اونه باسم.

نوریٔ: ناپوهه زوره ورې نګهت نه پوهېږې د خپل زور متې او لاس خو تا په خپله مات کړل.

( دوی لا په دې مذکور کښې وې چې د نوریٔ پلار رادننه شو او ډېر بد رد ئې نګهت ته اووئیل، چې هیڅ یوه لور او خور به داسې کار اونه کړی. لکه چې تا د خپل ورور او خاوند کور

شمشـور کـړ. د پـلار کـور دي تـالاکـړ، خپـل ورور او خاونـد دي مـړه کـړل، پـه دي خانـدان کنبـي هـډو سـتا خائـے نشـتـه، خـه ورکـه شه، چي په کومه لار راغلي ئي په هغه خه.

نـوريٰ: بابـا قاربـړه مـه، دا هرڅـه بـه قسـمت تـه منظـور و. آخـر د خـان خـور ده اوس پـه دي وخـت بـه چرتـه لاړه شـی کنـه. زړه خـو زما هم نه غواړي چي دا اوس زما په سترګو لړی.

هاشـم خـان: تـه نـه پوهېـږې نـوريٰ دا کـه چـرې دلتـه يـوه شـپه بله پاتي شوه، نو څه نور نقصان به جوړ شی.

نوريٰ: هرڅه چي کېږی خو نن شپه به دلته وی.

هاشـم خـان: بنـه ده خـو پـه حفاظـت نـي سـاته، چرتـه بلـه ډنـډه اونه لړی.

نګهـت: دا تاسـو لـه نـي چـې خونـد درکـړ پـلار وايـی چـي اوخـه او لـور وائـی شـپه بـه يـم، چـي تاسـو څـه وائـی نـو هغـه ب کېـږی. داسـي څـوك دی چـي مـا بـه د کـوره اوباسـی. زه بـه پکنبـې تـوري غوړي نه کړم توري هن.

هاشـم خـان: خـوړې نګهـت دا سـتا خپـل کـور دے، خـو زه حېـران يـم چـي سـتا پـه سـينه کنبـې څـومره سـخت زړه پـروت دے، کـه سـتا پـه خائـے بلـه بنخـه وے نـو اوس بـه يـې د ورور پـه مخکنبـې خـان وژلـے و، خـو حېـران يـم تاتـه بنـه روغـه جـوړه ولاړه نـي او چغـي اوباسـي چـې دا زمـا د پـلار کـور دے. آخـر تـا د پـلار سـره څـه بنـه اوکـړل او د ورور سـره دي څـه اوکـړل، د دوه و خانـدانو فتنـه دي ونښلوله اوس به دا څوك غوسوی.

نګهت: فتنه ونښته! زه د خپل بدل اخيستلو په خپله ذمه واره يم، نور څوك دي چې زما د ورور بدل به اخلي، تاسو خلق خو به نې په مال بساط مزې کوئ او خورئ څکئ به، تاسو له خو خدائے جوړه کړه، څنګه ښه چا ونيلي دي، خدايه د چا وران کړې او زما ودان کړې.

هاشم خان: خومره بختوره ښځه نې هډو غم دې نشته. ډنډه هم تا جوړه کړه او خوشحاله هم ته نې.

(لږ ساعت وروسته خلقو د ناخبره اصغرخان جنازه اوچته کړه او نيمه شپه نې کلي ته قريب کېښودله. څوك نې ورولېږه او اشرف خان نې خبر کړ، هغه د اوښکو ډکې سترګې راپهر شو قار شو خو هېڅ نې ونه ونيل. ولې چې دا وخت د څه ويلو نه و، د معصوم ورور جنازه نې کور ته راوړه په کلي کښې شور او غوغا شوه، ټول خلق د نيك اصغرخان په مرګ چور چور او ډېر خفه وو، خلقو په زار او قطار وژړل خو څه کېدل. نه اصغرخان ژوندے کېدے شو او نه نې د بدل اخيستلو وخت و. د کلي محلت ټولو خلقو په مورآبې تهمتونه ونيل. بدرد ورته ونيل کېدے شو او په ژړا ژړا کښې د ګلون بي بي سره شوي ظلونه يادېدل، چا به وے چې هغه غريبې به ښېرې کړي وي، نو يا خدايه چې دا ښېرې خپل ځائے ته رسېدلې نو ډېره ښه به وه، چې د اصغرخان په ځائے اشرف يا دا مور آبې مړه وے. نو څنګه ښه به وه. د کلي محلت ټولې ښځې د کټ خوا ته راغونډې وې، شپه اوږده وه. د ښخولو وخت نه و، ځائے په ځائے نايان او نوکران خواره شول او د اصغرخان د مرګ غږ

خور شو. سحر نزدې و، انخر ماما د قباد خان کره اواز وکړ، قباد خان لا د کټ نه، نه و پاڅېدلے او د شپې په جامو کښې و وارخطا رابهر شو، طماچه ئې په کونډه کړې راغے) "انخر ماما خير دے؟"

انخر ماما غريو نيولے و، په سلګو ونښتلو.

قباد خان: څه چل دے ماما څوك مړه خو نه دى؟

انخر: اصغرخان مړ شوے دے!

قباد: څنګه؟ په څه؟ د هغه د ناجوړتيا خو چا هډو څه ويلى نه دى، هغه بله ورځ مې ليدلے و روغ رمټ و.

انخر: اسلم خان او هغه جنګ وکړ.

قباد: يواځې اصغر مړ شو، که خپل بدل ئې واخيستو.

انخر: اسلم خان هم سره د څلورو کسانو مړ دے.

قباد: آفرين شه په داسې خور لکه اسلم له ئې چې ورکړې ده، آخر هم دغه به کېده. اصغرخان ډېر ښه او نيك سړے و، ښه خلق په دنيا کښې ډېرې ورځې نه پاتې کېږي. هغه به آخر مړ کېده. دورور او مور په سترګو کښې نه ځائېده، ښه ده ماما ته ورځه او مونږ دراغلو.

قباد خان سرې سترګې کور ته واپس شو، خپلې تندارې او ګلون ته ئې اوويل. پاځئ چې روانېږو، ناوخته به شي.

ګلون: (په نرى اواز بانديې) خير دے وروره چرته ځو، څه چل اوشو.

قباد خان: (په ژړغونى آواز) اصغر خان مړ دے.

ګلون: هائے الله! اصغر خان ورور مې مړ شو اوس خو مې بالکل د هغې کوره طمع خوره شوه.

قباد: دا د خبرو وخت نه دے، ځئ چې ځو.

روزون: لیکن قباد خانه! دا خور خو دې ناجوړه ده، دا به څنګه ځي.

ګلون: زما هغې کور ته د تلو څه حق دے، زه به څنګ لاړه شم، په مورآبۍ خو د زوی هم غم دےاو بل به پرې زما د ورتلو غم شی د هغې په پرهرونو مالګه نه شم دوړولې.

قباد: که هغه مری او که چوی، ته به د خپل لمور په مرګ ضرور ځې، که هغه خفه وو، نو بیا به زمونږ سره راځې، څه چې ځو.

ګلون: تاله څنګه فتنه جوړه کړم، خوږه وروره! د خاوند مې هم سترګې راته ښکته دی، نو زه څنګه لاړه شم.

قباد: زه اسلم نه یم خور! چې د ښځو خبرې منم او خپل خپلوان د خپل ځان نه پردی کړم، هغه دې کور دے، آخر به ورله ځې دا خوښه ده چې اشرف خان تاته څادر په سر کړےو، که ته د خان نه راوتلې وې، نو قسم مې دې په خدائے وی چې په هغه ورځ به مې په ټوپك وېشتلے وے، خو ښه راته پته ده چې ته بې ګناه او بې قصوره ئې.

ګلون: ځئ چې روانېږو، ناوخته به شی.

روزون: یا جینۍ! ته خو ناجوړه ئې څنګه به ځې.

ګلـون: د پښتـو پـه ځانې بـه پـه سـترګو د خپـل ورور دا غم اوچت کـړم. زمـا د خـواري او بدقسـمتي خدايـه! دا دې راباندې بـل تـندر راخلاص کړ، اصغر چې کله به راغـی نـو راتـه بـه ئـې اواز کـړ ورنـدار ځنګـه ئـې؟. اوس بـه راتـه څـوك غـږ کـوی، زه خـو پـه رښتيا مېراته شومه، زه به څه کومه؟

(دوی ټولـه کوړمـه پيـدل راروان شـو، د ګلـون ټـول وجـود پـه زخمونـو چـور چـور و، پـه منـډه منـډه راتلـه، کلـه غورزېـږه کلـه پاڅېـږه، چـې ځاخـت وخـت شـو، نـو دوی پـه کـور راننوتـل. د اصـغرخان جنـازه پرتـه وه، ښکلـې خنـده رونـی او ښائسـته زلمـی بـې ګنـاه قتـل شـوی د خنـدا شـين پـروت و. د ګلـون چـې پـرې سـترګې ولګېـدې، لکـه مـور غونـدې پـرې راارتـاوه شـوه او پـه چغو شوه.)

ګلـون: وروره! څـه دې اوکـړل، دا چرتـه لاړې، زه خـواره خـور دې چاته پرېښودم، زما به اوس څوك تپوس کوی؟

(د کلـی محلـت ټولـو خلقـو د ګلـون سـره پـه غـم کښـې چغـې کـړې، او پـه زوره زوره ئـې اوژړل، نـو مورآبـی راغلـه چـې دا څـوك راغلـه چـې داسـې پـه ژړا شـوه، چـې وئـې کتـل، نـو پـه ګلـون ئـې سترګې ولګېدې.)

مورآبـی: تـه څلـه راغلـې د متېـزې لـورې، زوی خـو مـې مـړ شو.

ګلـون: مورآبـی! مـا معـاف کـړه، کـه زمـا نـه څـه غلطـی شـوی وی، نو ما اوبښه!

مورآبۍ: اوخه د کوره چې مې درباندې سترګې اونه لږې.

ګلون: نن خو په ما د اسمان تندر راپرېوتے دے، مور چرته لاړه شم، که ستا زوے مړ دے، خو زما هم ورور مړ دے.

مورآبۍ: اوس دې ورور شو، تراوسه پورې د لېور و، دا چا مړ که خو ستا د لاسه مړ شو کنه.

ګلون: مورآبۍ په داسې دروند غم کښې څوك داسې خبرې نه کوی.

مورآبۍ: چې لفظ راسره بدل نه کړې، سترګې دې فنا کړه، اینګور دې راله د کوره اوشړله او زوی دې راله مړ که.

ګلون: که ته خفه کېږې، نو زه به خیر دےلرې کېنم.

مورآبۍ: لرې لرې، د کوره اوځه.

(دوی دا شر کاوه او خلق راغلل جنازه ئې اوچته کړه، د اصغرخان خور هم په زوره زوره ژړل او خپل مخ ئې وهلو زما د خوارې وروره! زه دې یوازې داسې پاتې کړم.)

د جنازې یو سر اشرف او بل سر قباد نیولے و، مورآبۍ رامنډه کړه او په قباد ئې ګذار وکړ او لګیا شوه.

مور آبۍ: داسې دې راآبنډې خوا یخه شوه بختوره! د زړه مدعا یو دې سره شوه ستا خور هم دا غوښته، چې یو زوی مې مړ شی او هغه مړ شو، نو اوس ته څه ګورې.

قباد: د قباد خان سترګې د اوښکو نه ډکې شوې، مور دا زما ورور مړ دے، ته هم عجیبه مور ئې په خپل زوی دې هډو پرواه نشته، خپل پردی ناست دی دا څه کوې.

مور آبی: که دنیا ورانېږي، خو ته به زما دا زوی نه وړې.
د اشرف خان خور بختی راپاڅېده او مور ئې ونیوه.
بختی: مور آبی بس که! دا څه چل کوې. دا هرڅه دنیا ته معلوم دی نور خان مه شرموه!
مورآبی: ته لاڅوك ئې چې زما د خبرو شوې څه ورکه شه.
بختی: ماته هرڅه معلوم دی، زه هم ددې کور لور یم، که دا ښځه دا وار د دې کوره اووتله، نو زه به د خپل خاوند د کوره راشم او دلته به کېنم.
مورآبی: ته څه د متېزې د لور پشان خو نه ئې.
بختی: ته خو خپل پردے او ښه بد نه پېژنې.
(بختی راغله او د خپلې ورندارې سره ئې د خپل ورو غم وژړلو او یو بل ته ئې ډېر وژړلو، بختی به هغې له تسلی ورکوله او ګلون به بختی له.)
بختی: ورندار بی بی اوس په ژړا څه کار نه کېږي.
ګلون: خورې خور مونږ خو تالا شو!
بختی: خدائے د بندیانو ثواب کوی.
ګلون: زه خو تباه شومه، زما خو هسې هم ډېر ښه عمر و. اوس خو به بالکل لکه دسپی عمر تېرومه. یه خور نګهت نه ده راغلې؟
بختی: نګهت خو خپله مدعا دسره کړه، زما ورور ئې خوښ نه و او مړ ئې کړ، خو زه حېرانه یم چې مورآبی پرې ولې

مهربانه ده.

ګلون: خیر دے څه کېږی، خو ډېر بد نې اوکړه، د جنازې سره ورله راتله پکار و، دومره لوني سرےمړ شو او رانغله.

بختی: هغه پردۍ ده په پردو خلقو ئې څه کار دے.

ګلون: د خوئی نه ډېره زوره وره وه، خواره شوې.

بختی: اوس به خپله زوره ورتیا خان له کوی، مونږ ترینه خلاص شو.

ګلون: څه خبر یو چې څه کېږی چاته معلومه ده.

بختی: دا ته څه وائې ورندار! د هغې دوباره راتله په دې کور نشته، یا به زه چرته نه راځم.

ګلون: ستا خو دا دپلار کور دے، خور ته به ولې نه راځې، د هغې هم خپل کور دے، چې کله دمه شوه، راځی به.

بختی: ولې به راځی، زما د ورور دجنازې سره نه ده راغلې او بیا به راځی.

ګلون: ستا نه زار شم خور، خان مه ستړے کوه، هډو غم غرض پرې مه لره، خان ولې تنګوې او ستړے کوې.

اصغرخان ښخ کړے شو، ډېرې ورځې په کلی کښې ماتم و، هېچا کښې دم نه و، چې څه خوشحالی نې کړے وے. بختی هم د ورور د مرګ په پېنځمه ورځ د مور د لاسه د خاوند کور ته لاړه او ګلون کوزې سترګې او خفه درمانده، د خاوند په کور کښې ناسته وه. نه ورسره د خبرو څوك و، نه نې طاقت و چې د چا سره نې خبرې کړے وے. د ورور سره راغلې

وه، نو د هغې کله مجال و، چې خواله ئې راغلے وے. د ماتم
خلق ټول خواره شول، قباد خان یو ځل بیا د خور لیدو له راغے
او په سرو سترګو وهلے ټکولے د مورآبی دلاسه ددې کور،
رخصت شو. د ګلون اوس په زړه کښې پرهرونه اوشو، د اشرف
خان ورته سترګې کوزې وې، ځکه چې مورآبی ورته اوس هم
هر وخت د ګلون غیبت او د نګهت صفت کولو.)

# بد قسمته زوے

د اصغرخان د مرګ ډېرې ورځې وشوې، غم د خلقو هېر شو او اشرف خان بیا لکه د پخوا په شان خپله حجره ډنډه برابر کړه. یوه عجیبه غونډې طبیعت نې اختیار کړ، لکه د ماشومانو غونډې خوی نې شو. هره ورځ د مورآبۍ سره ناست وی، کله ورته بنه وائی او کله ورته بد. د ګلون طرف ته هډو ګوری هم نه، د ورور د مرګ نه پس دوه درې شپې چرته په غطلۍ کور ته راغلے دے او بیا نې دې طرف ته هډو کتلی هم نه دیز موده نېتېه ډېره تېره شوه، ګلون د خلقو د جنګونو نه لرې دمه غونډې شوه، خکه چې په کور کښې نې لکه د مزدورې

مزدوری کوله او چا ب پري هډو کار روزګار نه لرلو. د خدائ کار و، یو خل بیا د ګلون قسمت ویخ شو او خلقو ورته سترګي رااوګرځولي، خکه چي نن نازو په کوټو کښي ګرمه ګرمه ګرځي ځوك وائي دا ولي نازو نن ډېره خوشحاله خوشحاله ښکاري، انځر ماما ورله مخي له راغې:

انځر: څه کوي نازو! نن ډېره په تبه کښي ئې؟

نازو: ماما خمه په دائی پسي.

انځر: خیر دے دائی ته څه ضرورت شو.؟

نازو: بی بی راته ناجوړه ښکاري.

انځر: یا خدایه ستا ډېر رحم دے، ته رحیم ئي، په دې غریبي رحم اوکړه او زوے ورله ورکړه. که چرې دا قسمت ئې بنه شي.

سبا سحر وختی نازو په مورآبۍ پسي په منډه منډه راغله. مورآبۍ ته ئې ووې.

نازو: مورآبۍ زېرے مې درباندي هلك وشو.

مورآبۍ: کېږی به نه شم درتلے.

نازو: مورآبۍ ډېر ښاپسته دے.

مورآبۍ: ستا پلار به وی ځکه ئې ډېر صفت کوې.

(نازو ډېره خفه شوه، د خان سره لګیا شوه، چي ما خو وے چي مورآبۍ به ډېره خوشحاله شي دا خو هډو غوږ نه ګروی، خم چي په خان زېرے اوکړم او دا په منډه رااوزغلېده.)

نازو: خان زېرے مې دربانديږ، پېنځه روپۍ به راکوې.

اشرف: ولې نازو څه چل شوے دے. وواېه کنه. که نه خبره دې اوکړه، نو پېنځه نه چې لس روپۍ به درکړم.

نازو: د بي بي زوی شوے دے.

اشرف: هن ما وے چې څه غټه خبره شوې ده، زما په خيال کښې خو د هغې زوے داسې دے. لکه په ډېران چې د سپي بچے وشي او څوك ورته هډو ګوری نه. څه ورکه شه. ستا څه کار دے چې په زېرو پسې منډې وهې او واوره که بل خوا چرته لاړې يا دې څوك خبر کړل. نو څرمن به دې اوباسم.

(نازو ډېره خفه او پرېشانه کور ته راغله. وړوکے هلك په کټ کښې بربنډ لتې تکوی. مور ژاړی مور نې ناتوانه په خوا کښې پرته وه. هېڅ قابو نې نه راځی چې هلك قلار کړی. ولې چې د پيدا کېدو سره مورآبۍ دائی د کوره وېستلې وه. نازو زر هلك په غېږ کښې اوچت کړ او په خپل څادر کښې ئې پټ کړ. مور ئې په خود شوه او هلك ئې د نازو په غېږ کښې اوليده. د نازو په سترګو کښې اوښکې راغلې وې د ژړا نه ډکې وې او غريو نيولې وه.)

ګلون: ولې ژاړې نازو! تاته زما قسمت معلوم نه دے؟

نازو: خير هغه لور وه، ليکن دا خوله هلك دے نو!

ګلون: دا لور او هلك ته حاجت نشته، صرف زما خپل قسمت خراب دے او زما په وجه دا ټول تکليف دوی ته رسی.

نازو: خير دے بي بي اوس خو ناکام خامخا در په غاړه

شو، څکه چې خدایې درباندې لوني رحم وکړ.

**ګلون:** زما زوے زما د راتلونکی ژوند دپاره بیا یو عذاب شو، زما په خیال.

**نازو:** نه بی بی! دے به ډیر خوش قسمت وی، که خیر وی ښه ته دے واخله او پټ ئې کړه. زه ورځم چې ملا صاحب ورله نوم کېدی، نازو په منډه منډه د ملا صاحب کره راغله، مولوی صاحب تري نه تپوس وکړ:

**مولوی صاحب:** خیر دے نازو چرته دې لار خطا کړه؟

**نازو:** د بی بی زوے شوے دے ملا صاحب!

**مولوی صاحب:** یا خدایه ستا ډیر ډیر شکر دے یوه مړه مور دې ژوندئ کړه اوس به ئې ژوند ښه شی.

**نازو:** ملا صاحب! څه طالعمند غوندې نوم ورله کېده.

مولوی صاحب: نازو خفه کېږه مه او تاد ی هم مه کوه، یو ډیر ښکلے نوم به ورله کېدم. سعادتمند به هم وی، څه ورشه بی بی ته وایه چې د هلك نوم سعید شو.

**نازو:** سعید سعید او هو دا خو ډیر ښه نوم دے، ډیر ښکلے نوم دے، بی بی به ډیره خوشحاله شی.

نازو زر زر کور ته راغله او د بی بی څنګ له راغله، ملا صاحب وائی چې د خان نوم سعید شو.

(شپې ورځې په منځ کښې تېرې شوې، بیا د جمعې مبارکه ورځ ده او بی بی اودس کوی. د یو لوئې خان زوے سعید صرف بدنام او ناکاره په دې دے چې د ګلون زوے دے او ګلون

ناکاره په دي ده، چې د سعید مور ده باقي ددې هېڅ قصور او غلطي نه شته.

نن بی بی د خپلو جامو نه یوه جوړه ورانه کړې ده او هلك له نې تربنه جامې جوړې کړې دی.

اشرف خان هم کور ته راغے او مور ئې هم ناسته ده. هډو څوك تپوس نه کوی چې هلك چا جماعت ته وېستلے دے؟ یا ئې مور اودس کوی یا ورله چا غوړی او چرګ ورکړی دی او که نه، خو نن بیا هم په ډېره طبع کښې معلومېږی، ځکه چې نن ورسره د جنګ هډو څوك شته نه. نګهت د پلار کره ناسته ده او اشرف خان هم سترګې کوزې کړې دی، د مور په خوا کښې ناست دے مور او زوے ځانله خبرې کوی.)

مورآبې: دې د متیزې لور ته وګوره، دا هم د زوے مور شوه، ددې به دا خیال وی چې کور به ئې خپل شی. خو زانه په سترګو به هم ونه وینی. زه څه ورو کې جینۍ یمه څه؟

اشرف: لګیا به ئې ابی سېۍ ده ګرځی به. زمونږ خو لونی کور دے، هر څوك پکښې خوری څکی، دې وخوړه نو څه وشو.

مورآبې: خورې څکی خو هر څوك خو کار هم کوی کنه. دې دغه چونډې په ترخ کښې نیولے وی ګرځی راګرځی.

اشرف: دا خو آبې ستا غلطی ده. چې ته ئې بېکاره پرېږدې، یو څو ډبونه ترې پورته کوه روغه موټه به وی.

مورآبې: هئے هئے زویه خبر نه ئې، د کوهی بلا ده، که چرې مې یو ګذار ورکړ، نو سل به ئې راتبندې کړې وی.

(دوی دا خبرې کولې او ګلون اوریدلې، خو زغم نې تېرولو. صرف په مخ نې اوښکې بهېدلې، نور نې هېڅ نه ویل او کله به نې رو غوندې د خپل قسمت نه ګیله اوکړه، چې یا خدایه چې زه دې د ښه همه بلاګانو په خوله کښې ورکړے یم، ما څه ګناه کړې ده، زما څه تقصیر دے، زه خو نه پوهېږم.)

مورآبۍ: اشرف خانه! بچیه مور چې بچی ته څه وائی د ښې وائی، لعنت شه په هغې مور چې بچی ته به خرابه ښوونه کوی او ناکاره به وائی، خو بېګاه مې نګهت سلطانه بی بی په خوب کښې لیده داسې زېړه او وچه کلکه وه، ما تربنه تپوس وکړ، نو ویل ئې چې خپل کور مې یادېږی.

اشرف: مور دا څه دومره غټه خبره خو نه ده، راځی دې کنه.

مور: یا بچیه! دا ته څه وائې، څنګه پېغله ښځه بې خاونده کور ته راولم، خلق به څه وائی.

اشرف: زه څه نه شم وئیلے مور چې ستا څنګ خوښه وی نو.

مور: زما خو دا خوښه ده، چې د ګلون سره ستا هسې هم طبع نه لږی، لاس دې تنګ دے او د کار کولو دپاره هم په کور کښې څوك نشته، ګلون پخول کوی خو لکه خاورې ایرې او د هغې داسې پخول دی لکه چې ګلونه او ګوره سرے خوری، نو که زما خبره منې نو چې دلته ئې راولم او ستا نکاح پرې وکړم. د دوه وه خاندانو په مینځ کښې به فتنې هم ورکې شی

او ستا د کار کولو دپاره هم ډېره ښه ده.

(ګلـون جـامې رااخیسـتی غلـې غونیـد ناسـته ده، خپـل بدقسـمته زوے نـې پـه تـرع کښـې دے. دا خبـرې اورې او رو غوندې نې جامې د لاس نه پرېوتلې او کش غوندې وشو.)

مورآبـۍ: د سـپی لـور دا تـه نـې. ولـې زمونـږ خبـرو تـه ودرېږې؟

ګلـون: مـا خـو جـامې رااخیسـتلې دی، مـور آبـۍ اودس کـوم خو...

مورآبۍ: خو خو څه؟ ووایه کنه څه دې کول؟

ګلون: خان ناست و، نو درتلے نه شوم چې...

مورآبۍ: ښـه نـو دا تـه د حیـا کلـه شـوې او دې خبـرې سـره نـې پنـړے تـه لاس کـه، اشـرف خـان د مـور لاس اونیـوه او پـه خپلـه نـې ورلـه یـو څـو ګذارونـه ورکـړل. نـن ګلـون بیـا د اودس کولـو نـه پاتې شـوه. وړوکـے زوے ئـې پـه زېـږ کښـې ژړېـږی. اشـرف خـان د قـاره ډک پاڅېده، او وائی:

اشرف: مورآبۍ په نګهت پسې څوک اولېږه.

مورآبـــۍ: االله دې پـــه ګـــور نـــور کـــه بچیـــه داســـې ښـــهٔ دې اوکړل

اشرف: اوس څوک اولېږه چې ناوخته نه شی.

مورآبۍ: ډېر ښهٔ غور به نې اوکړم، فکر مه کوه.

مورآبـــۍ زر تـــر زره یـــو اســـتاذے راواســـتولو نـــازو نـــن بیـــا د خـپلې مېـرمن سـره پـه سـرو سـترګو ژاړی، خدایـه دا ژړا بـه زمونـږ

په قسمت ګې وی نو، د کلی یوه زړه ښځه صبرګله ترور راغله او مورآبۍ ته ئې سلام اوکړ.

مورآبۍ: ښه ده صبرګلې چې د وخته راغلې. ډېر ضروری کار مې و

صبرګله: ما وے چې زر ورشم چې سوال جواب زده کړم. نو بیا به ګورم

مورآبۍ: صبرګلې! ستا په شان اعتباری ښځې چرته پیدا کېږی. کنه د سوال جواب دپاره نور خلق لږ دی څه؟

صبرګله: زه خدمتګاره یم مورآبۍ. د پخوا نه مې خدمتونه کړی دی او اوس به ئې هم کوم مور و پلار مې نې. نور مې څوك دی

مورآبۍ: صبرګلې ته په غوږ کېنې پټه څه اوږده غونډې خبره وکړه او ورله ئې څه سامان هم ورکه، څه بچې په مخه دې ښه، الله پاك دې په ډکه منګول راوله. هله جینۍ! اوبه وریسې ګذارې کړه، صبرګله لاړه رخصت شوه، ګلون یو سوړ اسویلے اوکړ

ګلون: هائے خدایه دا ساه خو دې خپله ده. اخلې ئې ولې نه؟

نازو: خدائے دې نه کړی الله دې د دشمن مخ تور کړی.

ګلون: زه چې د څه نه یرېدم هغه اوشو.

نازو: بی بی زه حېرانه یم، چې د مورآبۍ تاته ولې سترګې کوزې دی.

ګلون: نازو ما په خپلو شونډو او ژبه جرندي وهلې دي.

نــازو: عجيبــه خبــره ده. هغــه درســره دومــره زیاتــې کــوی او تــه ګوخ قدري هم نه کوي.

ګلــون: مــا د خپــل رب ســره وعــده کــړې ده. چــې دا راز بــه ښکاره نه کړم.

نــازو: زمــا ښکلــې بــی بــی! دا هرڅــه ووايــه چــې دا آفــت درنــه لرې شی، د خولې په خبره کيږي او ته دومره سخته تيروې.

ګلــون: نــازو زمــا عمــر هســې هــم تيــر شــو او پــه تيــر حســاب دے د خپل زوے ژوند نه شم خرابولے

نــازو: آخــر ســتا ژونــد ولــې دومــره خــراب دے. پــه خدائــے حوالــه وکړه او دا ټول غمونه د ځان نه لرې کړه.

ګلــون: دومــره مــوده مــې ســتغې ســپورې زغملــې دی اوس بــه څــه اوکــړم او بيــا اوس بــه موراَبــې وانــې چــې دا د بنتــون نــه يرېږي، خکه نې په ما پورې دروغ جوړ کړه.

نازو: بی بی د غریبو خداې ملګرے وی.

ګلــون: نــازو هيــڅ ارمــان مــې نشــته، خــو چــې خدائــے دا خپــل ساه واخلی نو ډيره به خوشحاله شم.

نــازو: تــه هســې خفــه شــوې بــی بــی، د ســختې نــه وروســتو راحته خامخا وی.

(د ماښــام وخــت دے. صبرګله د نګهــت کــره راورســيدله. پــه کور کښــې هنر خوږ دے. صبرګلې تــه هډو چا پخير او نــه ونيلو.

د ورندار او د ایندرور په مینځ کښې خوږ دے یو بل ته بد رد وائي

نګهت دا زما د پلار کور دے. که زړه دې چوی نو خدائے دې تې اوچوی کنړه شه. ړنده شه. خو زه به دلته یم

نوریٔ: خدائے دې بښه اوشرموه. نګهت: زما کور خو دې په ما وران ویجاړ کړ اوس نوره راځخه ولې نه قلاریږې. ته خو د خاوند د کوره د پلار کره راغلې نې. او که دلته خفه شوې. نو بل خوا ته به لاړه شې. لیکن زه به چرته لاړ شم. د خپل پلار نوم نه شم بدنامولے

نګهت داسې خبرې کوې لکه چې د اسمان نه راکوه شوې نې. او هډو څه دې په سترګو نه دی لیدلی او زه دې هرڅه نه خبر یم

نوریٔ: زه څه ګلون نه یم که مې یو ځل خوله اوسپړله. نو لمبه به دې کړم. تا د ګلون صبر لیدلے دے. نو هرسړے درته ناکامی ښکاری. دا خو ګلون ده. چې په اور کښې بې ګناه سوزی او غږ نه کوی. زه وایم چې ګلون صابره نه ده. خو وېرېدونکې ده

نګهت ښه ښه اوس دې دا راپورې هم جوړه کړه. مړېږې زما ورور مړ شو نو اوس به بل خاوند اوکړې

نوریٔ: ما دې خدائے د بل خاوند نه اوساتی. زه ستا په شان نه یم چې د خاوند دې لاځلوښتمه نه ده شوې او جوابونه دې شروع کړل. چې مورآبې ته اوونی چې ځوك راپسې راشی

چې زه ورشم آخر ستا په هغې کور کښې اوس د تلو څه حق دے. دا ته د دویم خاوند دپاره نه خې؟ او زما به د خدائے په حکم دا ویښته سپین شي لکه د غاښونو خو کونتون به پرې نږدم.

نګهت. داسې ستا په شان ډېر خلق وانې ورور زما مړ شو او په مال نې ستا پلار مزې اوکړې. چې جائيداد ختم شی نو بیا به دې خاوند ته طمع پیدا شی.

نورئ. ما پرېږده اوس سبي غاپه مه! ډېر جوابونه دې کول. دغه ده صبرګله ترور درېسې راغلې ده. کار دې اوشو. هرڅه کولے شې، هم غل او هم غمور ستا په شان خوش قسمته څوک دی.

نګهت. هلئے ترور ده پخیر راغلې پخیر! مورآبې جوړه وه؟ راځه کښېنه دا سپیٔ راپورې انښتې دے. هډو پرېږدی مې نه. ښه ده چې راغلې. که خاوند مې نشته خو هغه تش کور مې خونښ دے او لاړه به شم. جه چې روانېږو. چې ددې سپیٔ نه مې پرتوګ خلاص شی. خدائے دې دا په اور ورته کړی د سپی لور چې...

صبرګله نې هډو کښناستو ته حصاره نه کړهو نو هم د غسې نې ولاړه ولاړه غریبه سترې ستومانه بېرته راروانه کړه. پنړې نې په پښو کړې او څادر په سر. ښځه په تیاره کښې راووتله. په لاره نې ښه خوشحالی کوله. او ګرندئ راتله.

صبرګله بی بی تلوار مه کوه. زه تلے نه شم.

**نګهت:** ناوخته دے چې په وخت اورسو کنه!

**صبرګله:** نن د هغو هسې هم زمونږ نه د راتلو طمع نشته.

**نګهت:** مورآبې به خامخا زما دپاره ناقلاره وی، چې زر اورسو، نو هغه به ډېره خوشحاله شی، ترور دا خو ووايه کنه چې د ګلون څنګک عمر دے، د زوے د کېدو نه پس خو به ډېره په آرام وی.

**صبرګله:** آفرين په داسې ښځو شه، او مېندو له پکار دی چې هم داسې لونړه راوړی لکه چې ګلون ئې راوړې ده. مورآبې ورته لکه د لېونۍ سبې هر وخت ټوپونه وهی او اشرف خان وريسې لوړ راخيستلې وی، ليکن ګلون د خولې نه آف هم نه اوکاړی او هغه خپل کور کښې ښه په قلاره ګذاره کوی.

**نګهت:** زه حېرانه يم چې دا ګلون دومره سخت ژوند ولې تېروی، خوابښې او خاوند خو د ښځې د لاس شے وی که ښه ورسره کوی خو ښه او که ورسره بد کوی نو څادر دې ترې په سر کړی او خې دې.

**صبرګله:** بی بی دا د کم اصلو خلقو کار دے.

**نګهت:** چپ شه بې حيا! زه درته کم اصله ښکارېږم؟.

**صبرګله:** نه بی بی خدائے دې نه کړی، او که څه خرابه خبره مې کړی وی نو په ژبه مې دانه شه دانه.

**نګهت:** بس که ترور چې يوه خبره شروع کړې نو بيا هډو قلارېږې نه.

صبرګله: څه به ووايم بي بي څه نوې خبره نشته نو.

نګهت: د ګلون زوے سعيد به ښاېسته وی کنه؟

صبرګله: داسې ښاېسته دے لکه د ګلاب د ګل. دا ښکلې د الف په شان پوزه، وړه خوله، نرۍ نرۍ شونډې او دا غټې غټې سترګې (توف توف) خدائے دې ورته لونی کړی ډېر قوی هلك دے.

نګهت: ستا خو جوړ ډېر خوښ دے.

صبرګله: هغه غريب د چا نه دے خوښ بي بي.

نګهت: غريب په څه دے د خان زوے دے د خان.

صبرګله: غريب په دې دے چې د غريبې مور زوے دے بي بي څکه!

نګهت: هغه خدائے په څه غريبه کړه ددې خلقو داسې قسمتونه وی چې هرڅه کوی او خلق ورته ښه وائي.

صبرګله: مونږ دې خدائے د دروغو نه اوساتی که حقه خبره کوو، نو د هغې غريبې څه عمر دے، داسې عمر خو د سپی هم نه وی.

نګهت: چا وزته څه ونيلی دی چې غريبه ده.

صبرګله: هر سړے پرې خپل وس کوی، څوك به څه ووائي.

نګهت: صبرګلې ترور ته د مورآبې ډېره خوښه نې او که د ګلون ملګرتيا دې اوکړه، نو درسره به نې ورانه شی.

صبرګله: بی بی زه خو غريبه يم، خو وزې نه يم مورآبی.

چې ماله څه راکوی، کور دې کېدی زه بختوربږم پرې نه!

(نګهت پوهه شوه او د خبرې رخ ئې بدل کړ. ولې چې دا خو یو چالاکه او پوهه ښځه وه، لګیا شوه:)

**نګهت:** ترور ستا اینګور څنګه ده اوس؟

**صبرګله:** اوس ډېره ښه شوې ده، دا هلکان چې ورله خدائې ورکړی دی، نو ډېر زیات ناکام کوی.

**نګهت:** وئ! داسې ښه شوه.

**صبرګله:** خدائې پرې خپل رحم اوکړه، دمه شومه دمه. اینګور څه وی خو پردئ خور او لور وی، چې ښه وی خو ښه او چې بده شی نو سرے پرې څه تندر لګوی. بله ښځه دې وکړی.

**نګهت:** بله ښځه کول څه داسې آسان کار دے چې..

**صبرګله:** د سړی پورې خبره ده نو...

**نګهت:** ولې ستا زوے په خپلې ښځې زورور دے څه؟

**صبرګله:** هغه غریبه ښځه ده او زما زوے هم غریب سړے دے. څه به ئې زور وی خو هغه ښه ښځه ده.

دوی په خبرو خبرو کښې کلی ته رانزدې شول او کور ته رااورسېدل. صبرګلې ترور وروډېولو. مورآبې زر د کور ښځې ته ووې که خدائې مې نه خطا کوی. نو نګهت سلطانه بی بی راغله که څه؟

د ور ډېولو سره د ګلون زړه یو درز وخوړ. تراوسه ورته توکه ښکارېده. خو اوس ورته پته ولګېده، چې ښتون څومره ګران خیز دے بې قراره غوندې په کټ کښې کېناسته او

رنګ ئې تك زېړ وتښتېدلو. نګهت په شرنګ پرنګ کور ته راغله، مورآبۍ راپاڅېده ښکل ئې کړه.

مورآبۍ: ښه مو اوکړه، چې اوس راغلې. ډېر به ستړې شوې ئې؟

نګهت: نه يو ستړې آبۍ دمه يو رو رو راغلو خکه.

ګلون نازو ته ووې که دې خوښه وی نو دا هلك اونيسه، چې زه نګهت ته پخير ووايم. ګلون روانه شوه، مورآبۍ او نګهت د يو بل نه زارېږی او په خبرو کښې مصروفې دی.

ګلون: خور پخير راغلې پخير څنګه ئې؟

نګهت: مورآبۍ داسې اوږده لار ده.

ګلون: ستا نه زار شم، ستړې شوې به ئې.

مورآبۍ: ګوره نګهت! دا دې کټ دے او څملـه پکښې. وخت خو هسې هم سحر ته لږ دے. خو خير ناوخته به پاڅې کنه.

نګهت: نه مورآبۍ! زه به اوس څملم ناوخته دے.

(ګلون غريبې دوه درې واره خبره وکړه، خو هېچا ورله جواب ورنه کړ. مرئ ئې د لاړو نه لمده شوه او په مخ ئې د اوښکو سېلاب روان شو، خو څه ئې کولے شو. خپل کړی ناکامونه ئې نه خرابول، نااميده راواپس شوه.)

نازو: بی بی پخېر دې ووې کنه؟

ګلون: هېو هغې راته کتل هم نه.

**نازو**: زما هم دغه خیال و، ځکه درنه راغلم.

**ګلون**: ځومره بختوره نې ته، که څوك درته یوه خبره وکړي، نو تهٔ ورته درې ووانې.

**نازو**: په ما څه حرج دے چې د چا پرواه ساتم، دلته نه نو بل ځائې.

**ګلون**: هلك اوده دے نازو، که دې خوښه وی نو د چائے اوبه به کېدمه.

**نازو**: لاخو ډېر وختی دی هسې شپه مه رونړوه.

**ګلون**: نګهت مېلمنه راغلې ده او سترې به هم وی چې چائے ورله زر تیار کړم، مور آبۍ به خوشحاله شی.

**نازو**: هسې به ځان مړ کړې، مورآبۍ ستا نه نه خوشحالېږی.

**ګلون**: دا به خیر زما په قسمت کښې نه وی. زما نو حق دے خپل کار خو به کنه.

(سحر شو، ګلون درسته ورځ خدمت وکړ، سعید د ولېږې نه تاو راتاو شو. د ژړا نه ئې آواز بوغ شو، خو څوك وو چې آخیستے ئې وے. مېلمانه ګنړ وو. نګهت بیا یو ځل په دې کور کښې ناوې شوه، د اشرف خان ورسره نکاح بیا د غرمې په وخت وشوه، ډمامې وهلے شولې، خوراکونه خوړلے شول، ګلون ګرمه ګرمه ګرځېده او مزدوری ئې کوله. کله به ئې وخندل او کله به ئې د سترګو نه اوښکې روانې شوې. مورآبۍ ډېره زیاته خوشحاله وه، اشرف خان به هم پخپله بلنه کوله.

مورآبۍ راغله او په زوره ئې وونې چې که نګهت له خدائے هلك ورکړ، نو خلقو واورئ نوم به ئې وحيد خان وی، دا نوم زما ډېر خوښ دے، خلقو ټولو په برق برق وخندل. مورآبۍ دا څه وائي. واده نن اوشو او بيا نوسے دې راياد شو، ستا خوښه ده، چې څه نوم ورله ږدې، ږده ئې، زمونږ څه کار دے. مېلمانه عذرشو، خلق خواره شول. واده وشو. ماښام شو، ګلون ورې تربې او سترې ستومانه په کټ کښې پرېوتله چې اوده شي. ولې خوب کله ورځى، بنتون خو د هغې غريبې دپاره د تندر ګذار و او بيا د نګهت بنتون!!.

# وحید خان

نګهت یو خل بیا نوېبغله و ناوې شوه. د کور ټول کاروبار
ئې په لاس کښې واخیست. ګلون څه قدرې په آرام او په قلار
شوه. ځکه چې چا پرې هډو څه کار نه لرلو. کله وږې او کله
تږې. او کله خوږلې او کله نهره دا کار ټول د نګهت په ځونه
و. لیکن ګلون خو د دې کار هسې هم عادت وه. خو لږ د وهلو
او کنځلو نه دمه شوه او ساه ئې په قلاره واخیستله. پوره دوه
کاله تېر شول. سعید په رو رو وګرځېدو کله به په کټ پورې
ولاړ و او کله به هسې د مور خوا ته. د سعید لوئېدل بیا یو
وار د مور دپاره هنګامه شوه. ځکه چې اوس هغې سره غم شو

کله لوېږي، کله خاورې خوري. کله ېږخایه متیازې کوي او مورآبې ورله په مخ یو څو پړقه ورکوي. نګهت خو ورته داسې بد بد ګوري لکه چې د سر دښمن ني وي. د ګلون په ماشوم زوی چرته لاس رسي چې د لوبو نه ني منع کړي ږخوا د ګلون خپل وهل وو اوس د سعید وهل شروع شول او دا هر یو ګذار د ګلون په زړه لکه د تندر لږي. د خدائ په چارو ني لاس نه رسېږي. د دویم کال آخري مازیګر دی. نن ګهت بي بي هډو کاروبار له لاس نه وروړی او که کله لاس کړي، نو مورآبې پري آواز اوکړي:

مورآبې: ګوره جینۍ دا ته خو څۀ لېونۍ ني که؟ ناجوړه ني او کار کوې.

نګهت: نو نور څوك دی په کور کښې چې کار اوکړي؟

مورآبې: ګلون د متیزې لور ب چرته کار کاوه. نو اوس هغې هم خپل لوني چونډے زوے په غېږ کښې نیولے وی او داسې نې نیازبین کړے دے، چې ورته هډو د زمکې مخ نه ښکاره کوي.

دا وخت سعید غریب په خاورو کښې پروت و، ژړل ئې، ولې چې وږے شوے و او د ډوډۍ ورته چا هډو توك ورنه کړ. ښنې په ابرو کښې مړې او په زوره زوره چیغې وکاږي:

"مول! مول! ماله دودۍ، زه ددودۍ خورم".

د ګلون د سترګو نه دا وخت لکه د پشکال سېلاب اوښکې روانې شوې، چې یا خدایه زه خو پردۍ خور لور یم، لیکن دا د دې خپل نوسے دے، چې په دومره خانۍ کښې دده دپاره سره

ډوډئ هم چرته نشته، غلے غلے د خان سره ژاړي
**مورآبي**: وايم درته چي دا هلك غلے كه كنه درپاسم درسي.
**ګلون**: خپل زوني په ترخ كښي نيولے او ژاړي بچيه چپ شه ډوډئ به درله اوس درکړم، هله ستا نه قربان شم.
**سعيد**: ماله ډوډئ مول ډوډئ
**ګلون**: يا خدايه چي نازو نن څه شوه، څه بلا پري اولګېده چي د چا نه ئي لړه ډوډئ راوړے وے.
**مورآبي**: يا نكهت سلطاني لړه سره ډوډئ نشته؟ چي دي وكناري له ئي وركړي چي ډك شي. وركه چي دا ستركي ئي مړي شي، توبه مي دي خدايه خورم دي خورم. ما داسي خوراكي وروكے چرته نه دے ليدلے. دده دا سره ډوډئ به څوك په سر اولګوي
**نګهت**: دلته خو آبي په دي شكور كښي سړي سړي ډوډئ شته، خو ما وے چي سپوله به ئي وركړو.
**مورآبي**: هن لور دا دي ښه ووے، څه څه دے به اوس غلے شي.
ولي سعيد كله غلے شو او آخر مور ئي په شر اخته كړه او خوابني پري راپاڅېدله. د سپي لور ته دا هلك غلے كه ولي نه او په سر ئي ورله يو څو كذاره وركړ، د ګذارونو سره يوه سپېره د سعيد په سر هم ولګېده او داسي غلے شو چي هډو ساه ئي نه اخيسته.
**ګلون**: شكر دے كه ما وهلے وخوړل، نو ته خو غلے شوے

کنه. بس که، که بل آواز دې وکړ، نو مورآبې ته به غږ کړم.

سعید د خپلې مور په اوږه سر کېښوده او وړې تېرې اوده شو. نن د ماښام راسې په کور کښې دا یانې ګرځې. مور آبې د غوړو او چرګانو طلب کوی. ګلون غلے د منډو په جئ ولاړه او اسویلی کوی. خدایه ستا خپل قدرت دے. زه هېڅ نه شم ونیلے. رنګ رنګ بدیان دې پیدا کړی دی، دا هغه مور ده چې یو لمسی له او یوې انګور له سره ډوډئ نه ورکوی او هم د هغې سړی بلې ښخې ته لوبړی پاسېږی. سحر نزدې شو، غږ وشو چې د نګهت بی بی زوے اوشو، د کور ښخې ګرندئ په مور آبې پسې راغله، زېرے نې پرې وکړ.

مورآبې: وشو ما وے کنه، چې جینئ غوره غوره ښکاری، وحید خان به پیدا کېږی. هائے زار شم د وحید خان نه، ورشئ په پلار نې زېرے وکړئ. د کور ښخه وړه وه په ګلون بی بی نې هم زېرے وکړ. د هغې سره یو دوه روپۍ وې هغه نې هغه جینئ له ورکړې او د خدائے پاك ډېر ډېره شکر نې ادا کړ. خدایه ستا ډېر لوئې رحم دے، چې نګهت له دې زوے ورکړ. که نور څه نه وی نو د سعید ورور دے په ده خو به مین وی کنه او که ډېر ناکاره شی، نو خپله پاتې شوې ډوډئ خو به ورله ورکړی کنه.

نن ورخ په کور کښې خوشحالی ده. حجرې ته ډلې ډلې خلق راځی او خان له مبارکی ورکوی. نایانو په زېرو کښې ډېرې پیسې جمع کړې، ورخ تېره شوه. سبا بیا ښادنامې وغږېدې او ډېر مبلمانه عذر شو. آخر په شپږمه ورخ د هلك مریچې وشوه، شپږ آته ګډان حلال شو غریبانانو له غلې

ورکړې شوې، لیکن ګلون او سعید ته چا سڅ ونه کړ. چې تاسو غله خوړلې ده کنه. نازو د کور د کار کولو نه وروسته یوه کتبوئ او توګله او لږ غوندې پوتئ نې ګلون له راوړل. سعید هم خان مور که او مور نې لږه غوندې وخوړله شپې ورځې په مېنځ کښې تېرې شوې، نګهت بی بی د خلوبښتئ اودس په ډېر درز درز سره وکړو او وحید سره د پېنځه وه دړو میتهاپانو جماعت ته روبهستلې شو. دا هره یوه کارنامه د ګلون په زړه د تېر ګذار و، خو څه نې کولې شو، هغه به خپلې اوښکې په چا سره تویه ولې. ناڅاپې غږ شو چې هاغے دے قباد خان راغے، د ګلون په مرئ کښې لاړې راغلې، چې خدایه شکر دے ورور مې راغے. یا نازو ته ورشه چې خان څنګه دے، ورندار مې جوړه ده او د مور مې ترینه هم تپوس وکړه او دا حال هم معلوم کړه، چې د څه دپاره راغلے دے. یا خدایه چې په ما پسې راغلے وی نو ښه به نې کړې وی، زه خو ورته شوم چې یو دوه شپې په آرام تېرې کړم. نازو لاړه او د خان نه نې خان خبر کړ، قباد خان د حمید خان مبارکئ له راغلے .اشرف خان د قباد ترخ ډك لیدلے و . نو ښه خوشامندی نې وکړې.

اشرف. قباد خان چرته دې لار خطاء کړه، ډېرې ورځې ورك غوندې وې.

قباد خان: ورورہ ناوزګاتیاوې نو.

اشرف: آخر د خپلو تپوس خو سړے کله ناکله کوی کنه.

قباد. خپل د چا پردی کېږی نه خانه، چې موقع مې

بیاموندہ نو راغلم.

اشرف: آخر څله راغلې دا خو هم وایه کنه.

قبـاد: خبـر شـوم چـې سـتا زوی شـوی دی نـو مـا وې چـې مبارکي به درکړم.

اشرف: هو دا خو د ډېر ښه وکړه، خدای دې وبښه.

قبـاد: دا مـې دواړه هلـك دپـاره څـه جـامې او نـور څـه سـامان راوړي دي، حوالـه نـې کـړه. قبـاد خـان چـې سامان اشرف تـه حوالـه کـړ، نـو هغـه کـور تـه راوړ. ګلـون چـې وکتـل، نـو ډېـره خفـه شـوه. چې ګـوره خپـل خـورنی لـه نـې یـو قمـیص هـم رانـه وړ. زمـا ورور خـو داسـې نـه دی، دا څـنګ چـل وشـو. سـاعت پـس قبـاد خـان ـ پخپله کور ته راغی، چې ورو کې هلك ووینی.

قباد: السلام علیکم مورآبۍ څنګه نې.

مورآبۍ: وعلیکم السلام! بچیه ښه یو واړه څنګه دی.

قباد خان: خیر خیریت دے ګلون څه شوه

مورآبۍ: دغه ده خواته دې پناه غوندې ولاړه ده.

قباد: اوهو! ته خو رښتیا پناه ولاړه نې زما نه خفه نې څه؟

ګلـون: زه د خپـل قسـمت نـه خفـه یـم وروره! سـتا نـه څـه ګـله وکـړم، تراوسـه مـې دا خیـال و، چـې تـه مـې ورور هـم نـې او پـلار هـم، لیـکن تـا راباندې هـم خـان نانګـاره کـړ. نـو اوس بـه څـه کـوم. زما خو ستا نه ډېره طمعه وه.

قبـاد: هسـې خفـه کېـږې کـه تپـوس کـوې، کـه نـور څـه دې

ضرورت وی چې راالولېږم.

**ګلون**: ورشه سعیده بچیه ماما ته سلام اوکړه.

**قباد**: دا څوک دے خور؟

**ګلون**: ستا خورنی دے خانه

**قباد**: زما خورنی دومره لوئ دے. زه خو اوس هغه بلـه ورځ د اشرف خان د نوکر د خولې نه خبر شوم، چې د اشرف زوے شوے دے. مور دې ډېره خوشاله شوه، چې خه د لور مې زوے اوشو. اوس به نې ژوند ښه شی او ستا ددې زوی نه خو هېڅو مونږ خبر نه یو هغه بل څه شو؟ ما خو هغه له ډېر سامان راوړے دے. د ګلون سترګې بیا د ورور په مخکښې ډکې شوې او اسویلے نې وکړه. خدایه زما هغه ورور دې هم هغوی له ورکه.

**قباد**: ستا هم بل څه نه دی زده خو ژړا ده او ژړا ده.

**ګلون**: ته نه نې خبر خانه زه څه ووایم.

**قباد**: نو په ډاګه ډاګه خبره وکړه کنه.

**ګلون**: ما خو تاسو ته د سعید د کېندو خبر په دریمه ورځ درلېږلې وه. تاسو څنګه ناخبره شوئ.

**قباد**: زما دې په خدائی قسم وی که چا راته حال وئیلے وی.

**ګلون**: تا چې چاله سامان راوړے دے هغه ستا خورنی نه دے د نګهت زوے دے، هغه اوس د اصغر خان کونډه نه ده، بلکې د اشرف خان ښځه ده.

**قباد**: دا ته څه وائې. په خدائے مې دې قسم وی، چې ډېر

خفه شوم (په ژرغونی آواز نې وونې) خو زما نه غلطی وشوه ما معاف کړه، زه به خپل خورنې لـه ډېر سامان راولېږم. کبلـه منده مه شې.

گلون: سامان مې نـه دے پکار وروره! خو ما ددې کونجاړ نه اوباسه.

قباد: خور د لونی خاندان نې، تـه بـه هرځنگه گذاره دلتـه کوې.

گلون: کرې مې ده خو اوس نه کېږی.

قباد: زه پـه دې کښې ستا ملگرتیا نـه کـوم. ښځې بـې وقوف ځيز دے په لږه خبره خفه کېږی.

گلون: څـه ووایـم وروره! زمـا خـو پـه جهنم کښې مېشته ده. نه پوهېږم چې په څه جرم عذابېږم.

قباد: خـور دا بـه ستا تقدیر وی د لونے خونے د ښځـو دا صفت وی چې همداسې په جهنم کښې عمر تېروی.

گلون: پـه جهنم کښې هغـه خلق عمـر تېـروی، چې جنت پـه سترگو نـه وینی، زه د ډېرو خلقو سره په دې کور کښې ښه کول وینم، او زما دپاره دا جنت جهنم دے. زما بالکل اوس گذاره نـه کېږی، ستا دې قسم وی وروره چې ما د یـو څـو ورځـو دپاره بوځه، کنه مره به شم.

قباد: ښـه ده، زه بـه اشـرف خـان تـه ووایـم کـه اجازت نـې راکړ، نو بوبه دې ځم.

قباد خان د کوره ووتلو او د گلون لږه غوندې تسلی وشوه.

خدایه چې خان ورله اجازت ورکړی، نو څنګه به ښه وی، دا لا
په دې خوشحالی کښې وه چې قباد خان واپس راغے:
**ګلون:** وروره خو؟
**قباد:** (غلے غوندې شو)
**ګلون:** زه به پیاده لاړه شم خیر دے.
**قباد:** بیا څه غلے غوندې وګرځیده.
**ګلون:** نه نه زه تیاره یم. ناوخته کیږی به نه زما سره هیڅ
سامان نشته.
**قباد:** ماله خو اشرف ستا د تلو اجازت رانه کړ.
**ګلون:** ولې خانه!
**قباد:** وائی چې که خی نو خی دې خپله مرضی نې ده. خو
بیا به واپس نه راځی.
**ګلون:** خدائے دې نه کړی زه به واپس ولې نه راځم او که د
نه راتلو خبره پکښې وی، نو وروره ته څه زما تلل حرام دی.
دومره سخته مې تیره کړې ده. اوس په آخر کښې د خپل زوے
حصه ورکه کړم. خو خپل زوے به ژوندے وساتم، ته څه په مخه
دې ښه شه!
(قباد خان ډیر خفه راواپس شو. د اشرف خان نه ئې رخصت
واخیستو او کور ته لاړ شه، په ټوله لار ئې د خپلې خور متعلق
سوچ وکړ، چې خدایه دا څومره درنه او نیکه ښځه ده، زه
حیران یم که ددې په ځائے بل څوك وے، نو زهر به ئې خوړلی
وے. خو دا ژوند به ئې نه وے تیر کړے او څومره اوچته حوصله

نې ده چې د خپل زوی دپاره به خپله بوتۍ خاوري کړم. دده
حصه به ورکه نه کړم. زما دې قسم وی ماته په داسې خور فخر
حاصل دے. زه به پرې ویاړ کوم. زه به انشا، الله تعالی هر
ځای سربلند او نیکسیرته ددې د برکته بنکارم. که په ما
پخپله راغله، نو زه به دا په اوږو ګرځوم او لکه د وروړ غوندې
حصه به ورله ورکړم. تف لعنت په اشرف خان شه او په مور نې،
چې داسې ښځه خدائے سرې له ورکړې او دے پرې بله ښځه
کوی. خو د دوئ په مینځ کښې به ضرور څه پټ راز وی. چې
نګهت دومره بد خویه او ناکاره او سره ددې زما خور ناقصه
او نګهت خوښه ده. پوهه نه یم چې څه چل دے او هو ما بد
وکړه، چې د خپلې خور نه مې تپوس کړے وے. دے په سوچ
فکر کښې غریب کور ته راغے. مور او خوېندو ترې تپوس
وکړو. ده ورته ټوله قصه وربیان کړه. هغوئ خوارانو هم د
ګلون په خراب قسمت اوښکې تونې کړې، خو څه کېدے شو.
دلته کښې د نګهت او د وحید خان چرچه شروع شوه. دوه
درې دایانې ورته ګرځی، قسم قسم پیئ ورته ورکړے کېږی او
رنګ رنګ جامې ورته بدلېږی. نګهت لکه د نوې پېغلې په
شان په کور کښې خرامانه خرامانه ګرځی او ګلون لکه د زړې
ښځې یو ګوټ ته ناسته ده. سعید ورسره دے، هم دغه د دوی
معمول و، کور ټول د نګهت په لاس شو. مورآبې پرې ډېره
مهربانه وه. درې کاله په مینځ کښې وتل، سعید د پېنځه و
کالو شو او وحید ددرې و کلونو شو. ګلون خپل زوی ته الف
ب ت ث الله یو دے، محمد زمونږ نبی دے، دا سبق شروع کړ.

کله کله ورته وائی هلکه که سبق دې ونه ویلو، نو خر به درنه جوړ شي.)

**سعید**: مول! خل څه ته وائی؟

**ګلون**: بچیه! خر ډېر ناکاره څناور دے، لتے وهی لتے.

**سعید**: نو ولې مول! لتې وخل څه ناکاله کال دے څه.

**ګلون**: ستا ته نه قربان شم، لتې وهل ډېر ناکاره کار دے

**سعید**: ښه ده مول چې ته وائې نو شبك به وایم که خیل وی.

**ګلون**: او بچیه! سبق وایه چې د خپلې متهي خاوند شې. زه څه کوم خو خپل ژوند به دې په راحته شی. زما خو سخته په قسمت کښې ده، هم داسې به مې سترګې پټې شي او د سترګو نه نې اوښکې روانې شوې او د سعید په سر ولګېدې.

**سعید**: مول ته ژالې ولې هنه؟

**ګلون**: نه ژاړم بچیه، زه خو خاندم.

**سعید**: ستا خو د ستل ګو نه اوکے بیګی.

**ګلون**: په دې کښې کار مه لره، خو وعده راسره وکړه چې ته به یو نیك سړے جوړېږې.

**سعید**: چې زه واده اوکم نو ته به دودئ لاکے څه؟

**ګلون**: که خبر وی دوډی بیا خان له په خپله ګټې.

**سعید**: زه واده کوم مول چې زه به یو نبك سلے جوریږم که خیل وی.

ګلون: او چا چې ورسره بد کړی دی. د هغو سره به هم بنه کوي. د هېچا نه به د بدل اخیستو کوشش نه کوي.

سعید: او که ناکاله کال اوکړم. نو بیا؟

ګلون: نو بس ته به د خان کره پاتې شې او زه به درنه د خپل پلار کره لاړه شم.

سعید: ستا بل کول شته مول چې لاړه به شې.

ګلون: او بچیه! زما خو داسې ورور دے که په سر مې ورله لاس کېښوده نو رانه به نې منع نه کړی.

سعید: مول نو دواړه ولې هلته نه جو، دودئ خو به لاکوی کنه؟

ګلون: بچیه! ستا دودئ دلته مقرر ده.

سعید: ولې ماله به ماما جی دودئ نه راکوی څه؟

(دوی مور او زوی د یو بل سره د غربت خبرې کولې. هلته مورآبې او نګهت د وحید د سنت کولو پروګرام کوی.)

مورآبې: نګهت بی بی! یوه غوا او یو سنډا به پوره وی کنه!

نګهت: خدائې دې نه کړی دا ولې، دا څه د غریب سړی زوے نه دے، دا زما زوے دے پوره درې سنګان او درې غواګانې به حلالې کړې، زه خپل زوے نه سنتوم.

مورآبې: دا نې د پلار رضا ده نو.

نګهت: زما زوے به زما په رضا سنت کېږی په دې کښې زه بل چا له اختیار نه ورکوم.

موراَبي: ما تنګه وه مه، خاوند ښځه سره جوړ شي:

نګهت: مور نن دې سترګې کوزې غونډې دي او لا دا هم وائي چې ما تنګه وه مه اوس ته زما په زوے باندې تنګېږې.

موراَبي: يه ښځې ما خو ستا د خوشحالۍ د پاره اووې چې ته خندګه وانې، ستا رضا ده.

نګهت: خير کنه: زه ناچاره نه يم، د خپل پلار کور مې شته، اوس به لاړه شم او خپل زوے به سنت کړم، واپس به راشم.

موراَبي: زما نمسے به ولې ستا دپلار کره سنت کېږي.

(د دوی دا خبرې ګلون اوري، او رو غونډې يې خپل ناسته زوے ته وکتل، بختورې نګهت خومره زور دې دے، زما د غريب زوے دا پېنځم کال دے، هېڅ نې د سنتولو نوم په خولې نه دے اخيستے او ته به په درېم کال د زوے په سنتو بيا د کوره اوخې. په دې کښې اشرف خان راغے د څه کار وبار د پاره او بيا زر اووتلو او د دوی بيا په خبرو لګيا شوې.)

موراَبي: دا خو ستا خپل مال دے، او ستا ددې زوے دے، چې څه ورسره کوې خو زياتے ښه شے نه دے.

نګهت: ښه دا ما چې څه ويلی دی، دا زياتے دے څه.

موراَبي: وړوکے کلے دے، په دې کښې دومره څوک دی، چې درې سنداګان او درې غواګانې وخوري.

نګهت: موراَبي دا خېراتي شے دے، ډېر ښه دے.

موراَبي: اے جينۍ چې د خوراك نې څوک نه وي. که

خبراتي وي نو څوك به پرې څه وكړي.
نګهت: سيند ته خو دې ارتاو شي، زه پرې څه كوم
مورآبې: سره كښنه زه د خپل زوي مال سيند ته نه غورځو
خوبږم
نګهت: هن ستا د زوي مال؟ ته سيند ته نه غورځوې مال
دې كومه راغي.
مورآبې: ولې دا زما د زوي مال نه دې؟
نګهت: تا زما سره پوخ لوظ كړے دے كوري كنه، اوس
به هل (حال) ووايم، نه به دې زوي وي او نه به دې دا مال وي.
مورآبې: خوارې ته په توقه هم نه پوهېږې. ما خو وے چې
ربښتيا به خپل زوي خوشحالېږې كنه، دا خو ستا خپل مال دے
او دده نه قربان شم، چې دے سنت كېږي، نو درې سندان او
درې غوا څه شے دي. زه خو وايم چې څه نور څه ډېر شے مې
ورسره خبرات كړے وے چې ته خوشحاله شې.
نګهت: خپل خپلوان به مې كله راځي؟
مورآبې: چې ستا كله خوښه وي.
نګهت: د سنت كولو نه يو دوه ورځې مخكښې پكار دي،
چې يو پل خو وينو كنه.
مورآبې: ډېره ښه ده استازي راغوښوه.
(نګهت زر زر آستازي ولېږل. د كلي محلت خلق نې خبر
كړل او چرته چې نې په لار لاره وو، راتي وستل. ليكن د ګلون

تېر ته ني هيڅ ست ونه کړ. نازو راغله او ګلون سره کېناسته.)

نازو: ته خو بی بی نانګاره ناسته يې، هلك دې هېڅو سمبال کړے نه دے؟

ګلون: نازو په څه پسې ني سمبال کړم؟

نازو: ولې سبا سنت نه دے څه؟

ګلون: دا خو وحيد خان سنتوی، څه د سعيد سنت خو نه دی، چې سمبال ني کړم.

نازو: مورآبې دا ناجابزه ولې کوی چې دومره لونی نمسے به بغير سنت کولو ساتی.

ګلون: بنه ده نازو وخت ته به ګورو.

نازو: وخت ناوخت پېرده ژوندی شه اخر خو د خپل حق دپاره څه لاس او پښې وهل پکار دی کنه

ګلون: زمونږ حق د څه دے نازو!

نازو: ته هم ددې کور مېرمن يې، خدائے يو زوے درکړے دے، د چا نه په څه کمه يې.

ګلون: نازو بس کړه داسې خبرې کوې چې هېڅو ددې کوره ناآشنا يې، په کور کښې د مېلمنو شور شعف دے، ټول د نګهت بی بی خپلوان راغونډ شوی دی او د هغې نه چاپېره ناست دی. ګلون خپل زوے په غېږ کښې نيولے دے او د نازو سره ورو ورو مشغولېږی. خلق د سنتو خبرې اترې کوی، ډمامې وهلے کېږی، د کلی جينکۍ ګډېږی، ګرمه ګورمه ده. نګهت بی بی د خوشحالی نه چوی، کله يوخاے ناسته او کله

بل خانے ولاړه. کله د پخلی خانے له ورشی او کله ډرق ډرق په خندا شی. دا شپه هم تېره شوه. سبا سحر بیا د مېلمنو د چایو په انتظام وکړے شو. اشرف خان په منډه کور ته خی راځی او د مېلمنو انتظام کوی. بعض موقعه د نگهت سره گپ شپ ولگوی او کله ورته رو غونډې قار شی. نگهت ورته خپلې خپلوانې ښایي، دا مې د ترور لور ده، دا مې فلانۍ ده، دا مې فلانۍ ده، د غرمې وخت شو او بیا د مېلمنو د ډوډۍ په انتظام وکړے شو. خلق اوس د سنتو په تاک کښې دے مونږ وشو، د مانخه نه وروستو. وحید خان ډېر په ډنگ ډونگ باندې سنت کړے شو او ورسره سعید هم لکه د کلی د یو واړه سنت شو. سعید د درد نه چغې وباسی. مول پرېېږده مې مل شوم، نازو وریورې د خندا شنه شی. لونی سرے نې او ژاړي. دا ستا د ژړا ورخ ده؟ غلے شه. درېواړه په خندا شو او بیا چپ شول.



# راز

وحید خان ډېر زیات نازبین عادت شو. مور آبۍ او خپل مور و پلار ورته هېڅ نه وو شه نکاری نه. ولې چې هغه د څه شي فرمایش وکړي، نو هېڅوک ترې انکار نه شي کولے، خکه چې د وروکوالي نه ئې خراب عادت کړے دے. اوس ترېنه مور و پلار او د کلي ټول خلق تنګ دي، نوے زلمے شوے دے او د خپل کلي په سکول کښې سبق وائي. لیکن حد درجه ناقابل او کند ذهن، خکه چې سبق ته هډو ګوري نه. د کلي ټولې لوفرۍ ئې په سر اخیستې دي. بل طرف ته سعید خپل سبق ته ښه فکر کوي، مور د وخت نه په ښه خوئي عادت کړے دے، او لنډه تنګه ګذاره ئې ورته ښودلې ده. اکثر خلق ترېنه خوشحاله دي، خو د چا مجال دے چې نزدې ورته ورشي، استاذان ئې هم ټول تعریف کوي او هر کال په امتحان کښې اول نمبر پاس کېږي.

لیکن ده ته د خپل پلار دا فرق کول ډېر زیات محسوس کېږي
ولې څه وکړی لاس نې نه رسي. نن د خپل یو ملګری اسد سره
په لاره راروان دے او څه خفه غوندې دے.

اسد: ولې یاره سعید خانه! نن څه خفه غوندې نې؟

سعید: مونږ به په څه خوشحاله یا خفه شو دا خو د غټانو
کار دے.

اسد: ته هم غټ نې د غټ سړي زوے نې. تاته ولې
احساس کمتری ده؟

سعید: ماته بالکل احساس کمتری نشته خو زه د خپل
تقدیر نه ګیله کوم، چې زه او زما مور ولې د ټکرو وهلو دپاره
پیدا یو.

اسد: زه خانه! ستاسو په ګاونډ کښې اوسم، دا هرڅه راته
معلوم دی، چې ستاسو سره څه کېږي. لیکن د خدائے په چارو
مې لاس نه رسي.

سعید: الله تعالی دې تا وبښي، په دنیا کښې مې اول ستا
د خولې نه د خان دپاره د همدردئ الفاظ واورېدل.

اسد: د کلی محلت ټول خلق ستاسو ملګری دی، خو څه نه
شي کولے.

سعید: زما کار بغاوت نه دے، زه نه باغی کېږم، ماته زما
مور ډېر غریب خوئي ښودلے دے. خدائے دې داسې مېندې
هرچاله ورکړي اسده!

اسد: آخر خو سړے خو دومره نه کوی کنه!

**سعید**: زه هم په دې حېران يم، چې آخر څه وجه ده.

**اسد**: دا ټول د مورآبۍ کارونه دي.

**سعید**: هغه خو هم ظالمه ده، ولې څه نه څه ترس نې په زړه کښې شته. خو د مېرې مور نه مې وېره کېږي. مېره مور مې ډېره ناکاره ده، زما مور ډېر کار کوي. ډېر ښه خوني نې دے. بيا هم ددې خلقو بدې شي.

**اسد**: بدې د هېچا نه شي، خو شريف خلق خلقو ته ناکامي ښکاري او د ښه خوني طمع نې ترې کېږي.

**سعید**: زه خو کله ناکله سوچ کوم، چې خدائے دې نه کړي زما د مور نه چرته غلطي نه وي شوې.

**اسد**: غلط خيالات زړه ته مه راوله. سعيده! ستا مور ډېره پاکه او نېکه ښځه ده.

**سعید**: نو ياره بيا ولې د دوی بدې شي؟

**اسد**: وروره تا ترې چرې تپوس کړے دے، چې په دې ولې دا دومره ظلم کېږي؟

**سعید**: هېڅ پته نې نه لږي، خو هر وار راته دا وائي، خبردار بچيه زما په شان په خپل زړه کتې واړوه. که اورې مه اوره، که وينې مه وينه.

**اسد**: پوه شوم دا راز دے چې زما مور ترېنه خبر ده او زما پلار او مور يوه ورځ پټ پټ لګيا وو او ما ترېنه اورېدلي دي.

**سعید**: آخر ماته هم واوروه کنه چې څه دي؟

اسد : خانه ته به چرته حال ووانې، زه وېرېږم.

سعید : زه ستا دوست یم اسده! زه به دا هېڅکله اونه وایم او په خپل زړه کښې به نې راز وساتم.

اسد : آخر به تنګ شې او وبه چوې.

سعید : زما دې قسم وی که سبوا د خپلې مور نه مې دا راز بل چاته ښکاره که!

اسد : او ستا مور ترېنه خبر ده زما په خیال خو حال نه وایی.

سعید : شابه شابه زر حال ووایه خوار شې، تادی کوه.

اسد : ډېر ګران کار دے، خو چې ته وانې نو زه به څه وکړم.

سعید : آخر د یار دپاره قربانی کوې کنه.

اسد : او ستا غوندې یار د پاره خو بالکل قربانی کوم.

سعید : ښه ده، نو شروع کوه.

اسد : یره خانه! لږ یرېږم.

سعید : زه درته قسم کوم کنه مسلمانه.

اسد رېښتونکې او یربدونکې غوندې په راز ښکاره کولو باندې لګیا شو. وروستو مخکښې نې وکتل چې څوک شته کنه، په مرئ کښې نې لاړې غوټه غوندې شوې، خو اوس چرته دسعید نه خلاصېدے شو، نو مجبوراً یې شروع وکړه:

اسد : سعیده وروره! ته لا نه وې پېدا شوے او زه به شاېد هم نه وم، د ډېرو ورځو خبره ده، ستا د پلار واده وشو. دا

نگهت بی بی چې اوس ستا میره مور ده، دا ستا د مړه تره اصغرخان ښځه وه.

**سعید**: ویٔ الله زما تره هم و؟

**اسد**: اوس نوري خبرې مه کوه سعیده، چې پوره پوره دې خبر کړم. ستا پلار او اصغر خان د یو پلار او مور نه وو او د دوی کشر د تره زوی کریم خان د بل پلار مور وو. زما مور داسې قصه کوی، چې کریم خان دې خدائے وبښی که ژوندے وے، نو دا دواړه رونړه به نې په مخکښې لکه نوکران روان وو.

**سعید**. شاباش یعنې نر و هن.

**اسد**: او ډیر نر او مخکښې تلونکے هلك و، د قدرت کار و، دے د مور و پلار نه یك یواځې د پینځه وو کالو پاتې شو. نور نې هیڅوك نه و. ستاسو د جانداد د نیم غوځ حقدار و، کله چې دے د لسو یوولسو کالو شو. نو ستا د مور سره به نې لکه د خپل ورو محبت کولو دا وجه وه چې مورآبې ستا مور ته ډیره قار قار په نظر راځي.

**سعید** دا خو هډو څه خبره نه ده په دې کښې د قارېدو څه وجه کېدے شي.

**اسد**: مړه، ته خبرې ته غوږ نه ږدې نو.

**سعید**: ښه ښه یعنې نور هم مخکښې څه شته؟

**اسد**: مورآبې به ستا مور ته وے چې په دې هلك هډو کار مه لره، لیکن ستا مور خو یوه نېکه ښځه ده، د هغې به پرې زړه سوزېدلو او دے ب ورته یو یتیم اسیر ښکارېدلو. نو ډیر

محبت نې ورسره کولو. مورآبۍ ستا نيا يوه ډېره بدنيته او خرابه ښځه ده، خانه اوس ددې خيال شو، چې که چرې کريم خان لونۍ شي، نو دے به خامخا زما د زامنو نه مخکښې شي ولې چې د هغه د اخلاقو نه په ډاګه دا پته لګېده او بله غلا پکښې دا وه چې زما زامن به د ټول جانداد مالکان شي. نو دا ولګېده او خپله کشره اينګور نې مصلحتي کړه، ستا مور ته نې خوني خکه نه وے چې دې ته پته وه، چې دا مې په دې کار کښې ملګرتيا نه کوي. نو دې اينګور دا اوس چې ستا مېره مور ده، زما د مور په لاس د سر د سپږو لرې کولو په بهانه زهر راوړل، خوابنې اينګور په دغه شپه چوکاټ تيار که او په هغې کښې نې کريم خان له زهر ورکړل.

سعيد: نو بيا څه چل وشو.؟

اسد: بس نو هغه غريب دوی په کټ کښې واچولو او پروت و، تر مرګه پورې نې ستا مور ډېر خدمت کړے دے او ورته ښه پته ده، خو اصل ذات و، چاته نې څه حال نه دے ونيلے.

سعيد: او زما پلار ددې نه خبر دے؟

اسد: نه نه ستا پلار ترې څه خبر دے، هغه خو هسې د مورآبۍ د لاس دے، چې هغه پرې څه کوي، هغه منی.

سعيد: دا خو واقعی زما نيا غټ ظلم کړے دے، دا خو به جولا هم اونه کړي.

اسد: ياره د خدائے دپاره چاته حال ونه وائې.

سعيد: زما دې قسم وی، که ما بغير د څه موقعې نه دا

راز ښکاره کړ، او یا مې پکښې ستا نوم ذکر کړ.

**اسد**: ماتــه خـو تــه د پــردې ښکاریـدې، کنـه دا بـه څـوك چاتـه وواني؟.

**سعید**: ستا مور او پلار ترې نه خنګ خبر شول؟.

**اسد**: چـې کـریم خـان نـاجوړه شـو، نـو زمـا مـور نـې تپـوس لـه راغلـه. زهـر خـو هسـې هـم هغـې راوړی و، چـې هغـې وکتـل، نـو د هغه حالات د زهرو معلومېدل او هغه پرې پوهه شوه.

**سعید**: زمـا نیـا پـه دې خبـر ده کنـه، چـې سـتا مـور و پـلار ترېنه خبر دی.

**اسد**: نـه نـه هغـه څـه خبـره ده، چـې زمـا مـور پـرې لا هـم پوهـه شـوې ده، د هغـې خـو دا خیـال دے چـې یـوه زه خبـر یـم او یـوه مـې کشره اینګور.

**سعید**: تاتـه څـه پتـه ده چـې زمـا مـور ترېنـه هـم خبـره ده، دا څنګ کېدے شي.

**اسد**: زمـا مـور دا قصـه کـوی چـې زه وراغلـم نـو دا نـې سـر تـه ناسـته وه، زمـا هـم د سـترګو نـه اوښـکې تـونې شـوې او دې هـم ژړل دې ماتـه ورو غونـدې وکتـل او پیـا یـې کـریم خـان تـه وکتـل، نـو کـریم خـان ووې. ورنـدار او بـه راکـړه، ډېـر تـاو دے راباندې، د کـریم خـان سـترګې پټـې شـوې، هـډو دا خیـال نـې ونـه کـړ، چـې دلتـه بـل څـوك هـم ناسـت دی، نـو پـټ غونـدې نـې سـتا مـور تـه ووې، ورنـدار مورآبـې ډېـر بـد وکـړه، صـرف د دولـت دپـاره نـې مالـه زهـر راکـړل ددې خبـرې سـره سـتا مـور پـه ژړا شـوه او بیـا نـې

زما د مور نه تپوس وکړ:

ګلون: ترور کريم خان رشتيا چا زهر ورکړي دي؟

ترور: او او په دې کښې څه شك دے. خدايه چې...

ګلون: ترور ووايه په زړه زنګ مه پرېږده.

ترور: زه وايم چې خدائے مې دې دا لاس مات کړي.

ګلون: آخر ته خپل لاس ولې ماتوې، ترور!

ترور: ته نه نې خبر دا زهر ما راوړي دي؟

ګلون: (په زوره) هنه! تا راوړي دي؟

ترور: په زوره کېږه مه اوس خپل عمر به خراب کړې. زه څه خبر وم کنه ما به زهر هرګز نه وو راوړي، خو نګهت راته دا بهانه وکړه، چې په سر کښې نې غورخوم.

ګلون: توبه مې دې وي خدايه، نګهت په خزنو داسې کار وکړه او د غره هومره سړے نې مړ کړ.

ترور: دا يواځې نګهت نه دې کړي. مورآبي ورسره ملګرې ده. بلکې کار مورآبي کړے دے او نګهت نې د خپل خان د فايدې دپاره ملګرتيا کړې ده.

اسد: ته اوس پوهه شوې کنه سعيده!

سعيد: او، زه اوس ښه پوهه شوم، دا خو واقعي، ستا مور ډېر کمال کړے دے، چې دا راز نې پټ ساتلے دے، آخر دا خو ووايه کنه، چې ته ترې نه څنګه خبر شوې؟.

اسد: زه يوه ورځ ناجوړه وم، په کټ کښې پروت وم. د

دوی دا خیال شو، چې دے اوده دے، نو خان له نې دا خبې شروع کړې.

پلار: یره جینۍ دې مورآبۍ ډیر بد وکړ

مور: د اسد پلاره څه به نې وے داسې ظلم نه کړے دے. ګوره ته! څوك به خپل لیورزے د دولت دپاره په زهرو مړ کړی؟

پلار: چې آخر دا ملګرتیا نې چا کړې ده؟

مور: مشره اینګور نې ترینه هیڅ خبره نه ده. د مورآبۍ خو مشره اینګور د کریم خان په سر داسې بدې شوې ده، لکه د سپی، خو دا ټول کارونه ورله کشرې اینګور کړی دی.

پلار: ښه ښه، نو نګهت بی بی خو به نې اوس ډیره خوښه وی.

مور: او کنه، چې اوس نې خوښه نه وی نو څه به کوی، یربړی ترینه. که چرې حال ووانې. د اسد پلاره بس که اوس دا خبرې مه کوه، زړه مې خرابیږی، ډیر ظلم شوے دے. داسې زیاتے څوك نه کوی.

سعیده وروره! ما دا ټولې خبرې واوریدلې، او خان مې ښه قصداً اوده که. چې دوی راباندې پوهه نه شی اوس مې دا حال تاته ووایه. خو چرې ته نې چاته ونه وانې.

**سعید**: نه نه یره مه یربړه، دومره ماشوم خو نه یم کنه.

**اسد**: د کور لاړ هم نزدې شوه.

**سعید**: اوس به جدائی راځی.

اسد: څه جدائی ده، خو مازيګر به بيا يوځاے شو.

سعيد: انشاءالله تعالی که ما موقعه بياموندله، نو دربه شم.

اسد: مره راښکاره کېږه، دومره د کتاب چينجے هم د خان نه جوړول نه دی پکار.

سعيد: اسده وروره په دنيا کښې اول خپل مقصد حاصلول پکار دی بيا نور کارونه هسې هم ډېر دی کېږی به.

(دوی يو بل رخصت کړل او خپلو خپلو کورونو ته روان شول. سعيد په لاري لږ غونډي حصار شوے و، خکه چې اسد ورته ټوله قصه بيانوله چې کور ته راغے نو مور ورپاڅېدله او ښکل ئې کړ، کتابونه ئې ترېنه واخيستل.)

ګلون: سعيده بچيه! نن ولې حصار شوې؟

سعيد: لږ په دمه دمه راغلم څکه.

ګلون: بې ځايه څوك نه حصارېږی بچيه ګوره په تهيك وخت باندې خان رارسول پکار دی.

سعيد: آبی ډوډی راکوې که نه.

ګلون: دا زه درته بيا بيا ولې وايم چې وختی راځه.

سعيد: ولې نو ډوډې نشته څه، وحيد خو هم لانه ده خوړلې اوس هغه دے خوری.

ګلون: وحيد دپاره وخت نشته بچيه ستا د هغه غونډې قسمت چرته دے؟.

**سعید:** ته خو ورشه کنه تپوس دې نه دے کړے او وے دوډئ نشته.

**ګلون:** ته وروکے نې نه پوهېږې زه د دې خلقو په سترګو پوهېږم بچیه، خلق متل کوی، د ویلو نه، نه ویېل ښه دی. که اوس مې تپوس د ډوډئ وکړ نو تیار جنګ دے او وهل کنځل به وی.

**سعید:** دا اوس هغه وخت نه دے موري چې څوك به خپل تپوس نه شی کولے.

**ګلون:** چپ شه ګورے که داسې خبرې دې شروع کړې، نو زه به درته دا کور پرېږدم او پلار کره به لاړه شم.

**سعید:** عجیبه غوندې زړه دې دے په معمولی خبره خفه کېږی.

**ګلون:** تا چې څوك بدو ته لمسوی نو خدائے دې په سترګو ړوند کړی، زه به نور څه ووایم.

**سعید:** آبئ ته هسې ژاړې ما نه څوك لمسولے شی او نه مې څوك غولولے شی، زه اوس د خبره لوئې سړے یم، په ښه او بد ښه پوهېږم.

**ګلون:** ستا لادا ورځې په ښه او بدو د پوهېدو نه دی بچیه ته لا وړوکے نې لوبې کوه.

**سعید:** د لوبو ورځې تلې دی موري! زه اوس خپل حق غواړم، چې آخر زما او ستا سره ولې دومره زیاتے کېږی؟.

ګلون: چپ شه بچیه! چې ددې خبرې نوم په خوله وانخلې که خانې به یو ورك شي.

سعید: آخر خانې به یو ولې ورك شي؟

ګلون: ستا دا خوښه ده، چې ستا په سپین سرې مور له څوك طلاق ورکړي او د کوره ې اوباسي وواپه سعیده! که ستا دا خوښه وي، نو هرڅه کولے شې ته زما زوے ئې، زما دربانديې حق دے، زما خبره به منې او که زما د مرضۍ نه دې یو کار خلاف وکړ، نو اوبه دې نه بښم.

سعید: ګوره مور! بیا د ورو په شان په ژړا شوې کنه! آخر دا ظلم نه دے چې د یو پلار دوه زامن یو، یو ښه په مړه ګېډه هرڅه خوری او بل له په نهره ګېډه د جوارو تیوك څوك نه ورکوی. آخر ته هم د پښتون پلار لور ئې، ماله څه وشو مور! په تا کښې خو هم غیرت نشته دے، ته څنګه دومره بې عزتي برداشت کوې.

ګلون: دا په تا نن څه شوی دی، خدائے دې خیر کړی، څه پاګل غوندې ښکارې.

سعید: مور نه پاګل یم او نه لېونے یم. روغ رمټ یم، لیکن په حیثیت د یو زلمی زوی زما دا فرض دی چې ستا خدمت وکړم آخر څنګه تا په دومره سخته کښې وویـنم؟ ما مه نیسه مور چې زه هرڅه په ډاګه کړم.

ګلون: دا ته څه د لېونو په شان ګډې وډې وائې، څه به په ډاګه کړې. که چا درته څه ویلي وي نو ټول دروغ دی. بچیه

اوس خلق دوه تنه په کور کښې په قلاره نه پرېږدي. خدائے دې دوی میراث کړی! د هغوی خبرې منې؟ زه درته وایم. زما نه بغیر چې درته څوك څه واني نو ټول به دروغ وی ګوري.

سعید: نه پوهېږم مور! چې ته ولې خپل زړه خوږې او په خان دا دومره درنې درنې ګټې ږدې. آخر تاته په دې کښې څه فایده معلومه ده بغیر د نقصان او تکلیف نه.

سعید: آخر فایده هغې خلقو ته رسول پکار وی. چې هغه د چا څه احسان منی کنه.

ګلون: دا دې بیا غلطه خبره وکړه بچیه! په چا د احسان اړولو دپاره خدمت کول خو غیر انسانی خبره ده. څوك چې د چا په رشتیا خدمت کوی، هغه خلق د چا د احسان په طمع نه وی.

سعید: څه نه څه سړیتوب خو پکښې وی کنه؟

ګلون: سړیتوب سړی ته بل زده کوی. خوږه! پخپله چې سړی کښې سړیتوب وی، نو نور خلق ترېنه خامخا سړی کېږی او چل ترېنه زده کوی.

سعید: مور څه نا آشنا غوندې خبره ده، دا سړیتوب یواخې په ما او په تا نه کېږی. خلق متل کوی د یو لاس نه پرق نه خېژی، دواړه طرف ته خلق ښه کوی، نو هله ګذاره کېږی. په دې کښې زمونږ سره څه سلوك کېږی ته نه ګورې؟

ګلون: دا څه دمره د خفګان خبره نه ده. بچیه! ناکام ډېر ښه څیز دے

سعید: آخر خو د ناکام هم څه حد وی کنه.

ګلون: ستا په شان خوانانو له د ناکام هڅو څه حد نه وی.

سعید: آخر مونږ څه کړی دی؟.

ګلون: صرف د تقدیر سوال دے.

سعید: تقدیر خو زمونږ پخپل لاس کښې دے مور!

ګلون: بې وخته څوك خپل تقدیر په خپل لاس کښې نه شی اخیستلے.

سعید: اوس دا وخت دے چې زه خپل او ستا تقدیر بدلولے شم که ته اجازت کوې.

ګلون: دا نن په تا څه چل شوے دے؟ چا درته څه ونیلی دی؟

سعید: مور زه د هر څه نه خبر یم، اوس زما نه خبره مه پټوه.

ګلون: آخر د څه نه خبر ئې؟

سعید خپلې مور ته ټوله قصه بیان کړه. مور نې حیرانه شوه، چې آسد خو ډېر بد کړی دی، ګلون یوه ډېره نیکه ښځه وه، دا نې نه غوښتل چې ددې د زوی د لاسه دې د خاندان شرم وشی.

ګلون: سعیده! ته زما زوے ئې زما سره وعده وکړه، چې ته به هم زما په شان په زړه او ژبه جرندې ووهې کنه، زه به اوس زهر وخورم او خان به مړم کړم.

سعید ته خپله مور ډېره ګرانه وه، چرته یې د هغې غریبې مرګ ته غاړه کېښودی شوه او وعده قسم نې وکړه.

سعید: مور زما دې قسم وی چې بې موقع به زه دا خبره هېڅکله د خولې نه اونه باسم او که چرې ښه غونډې موقعه په لاس راغله نو بیا به نه خفه کېږې، زه به هرڅه وایم بس اوس خو به زهر نه خوری کنه. ډېره دې دا کوږمه خوښه ده، ځکه چې ډېر ښه درسره کوی زمونږ د پښتنو هغه څوک خوښ دی چې بد راسره ډېر کوی، د ښو دشمنان یو. ښه ده چې ته خوشحاله نې، نو ماته هېڅ اعتراض نشته زه به تر ډېر وخته غلې پاتې شم.

مور ګلون خپل زوے په سترګو ښکل کړ، بچیه! ژوندے اوسې، دا به دې په ما تول عمر لحاظ وی. آباد اوسې، خپله مور درنه قربان شه، ستا د سترګو نه زار شم.

# ګلنار

د وحید خان د لوفرئ او فضل خرچئ تس پرهوت. خلکو ني بوخانے بل خانے خبري اتري شروع کړي. ډېر ډېر نشه دار خلق به نې تماشي له راتلل. چا له پیسې ورکړي او چاله جامې لوفران خلق نې ټول ملګری شو. حتی چې ډمانو به ترهنه هر وخت پیسې او روپۍ ورلې. د مور و پلار پري هډو څه پروا نه وه، چې کله به نې څومره پیسې وړې هغه ته اجازت و. په یو کلی کښې ګلنار نومې ډمه وه او دښاېست ني درز و. په هر خانے کښې نې غږ و، چې د ګلنار حسن او آواز او ګډا به سړے په ډېرو ډېرو څیزونو ورنه کړی

دلته د وحید سره د خپل کلی یو دوه خوشې تشی صرف د پیسو د وهلو دپاره ملګری دی. خبرے او ګلے نې نومونه دی، یوه ورخ خبرے او ګلے په لاره کې یوخانے شو، خبری د ورایه

وونې

خپرے هلکه ګلیه خبر نې کنه. ما خو یوه خبره اورېدلې ده

ګلے د څه هلکه؛ خان خبروې او مونږ ته هډو څه وانې نه

خپرے زما خو دا خیال و. چې ته خبر نې

ګلے ما ته څه پته ده. ما خو وے چې نن به بیا د خان سره څه پروګرام وی

خیرے اورېدلې مې دی چې کوز کلی کښې یوه ډمه ده.

ګلے او او داسې څه نرے غونډې خبر یم

خپرے نه یره پوره پوره به خبر نې په بل خبره کول غوارې

ګلے قسم مې دې وی که خبر یم

خپرے نو دا راته ووایه چې د ګلنار نوم خو دې اورېدلے کنه؟

ګلے یواځې ما نه د کلی ټول لونې واړه ترې نه خبر دی.

خپرے هم دغه د کوه قاف ښاپېرۍ ګلنار په کوز کلی کښې اوسی

ګلے ویَ الله! په مونږ لعنت شه. ګلنار غونې څیز په نږدې علاقه کښې اوسی او مونږ ترې نه یو خبر

خپرے دغه خو وجه ده کنه. چې دوه درې ورځې سړے ملاو نه شی بیا هډو د څه نه خبر نه نې

«دوی غلی غلی مشغولېدل او خان له نې مصلحت کولو او

سعید ورته پټ ولاړ و. رو غونډي راروان شو او توخې ني وکړې)

خېرے: ګلیه! خان که څه راغې.

ګلې: یاره توخې غونډي مې تر غوړ شوی دے نو.

خېرے: د سیانړه خلقو بلا واخلم د سړی توخې پېژني.

ګلې: او کنه یار! زمونږ خو پکښې عمر وشو. ناڅاپې سعید رامخامخ شو او دوی طرف ته ني لاړ ونیوه.

خېرے: دا خو یار هغه بد مذهبه دے.

ګلې: یره یو خو دے په هر ځائے کښې حضور وی.

خېرے: خالص د مرګ مچ دے نو...

ګلې: دے هم خان په خانانو کښې حسابوی کنه وګوره!

خېرے: مړه د شمزو به څه د یولښ وی. دے به څه وی او خانی به ني څه وی.

ګلې: دا خو ته واني، هر سړے خو وانی که یم خو زه یم.

خېرے: هر سړے خو سړے نه وی کنه یاره.

ګلې: سړے خو دغه زمونږ خان وحید دے.

خېرے: او کنه چې بل ته خو فابده ورسوی.

سعید : خبر دې وی رونړو څه مذکور دے؟

خېرے: بس هم داسې ملاو شو نو ودرېدو.

ګلې: ستا په دې کښې څه کار دے بس ولاړ یوو.

سعید : ته خو ګلیه د مرچکو په ختمه ناست نې دومره قار

شوي چي...

ګلې: ولې به نه قارېږم ستا د تپوس څه کار دے؟

سعيد: ما خو بس دا مناسب وګڼل چي سلام وکړم.

ګلې: دا مونږ درته داسې د ملايانو بچي ښکارو، چي سلام کوي؟.

سعيد: سلام کول سنت دی ګليه!

خېرې: مونږ فرض نه کوو او ته راباندې سنت کوې.

ګلې: مړه وزګار دے څه کار نې نشته.

سعيد: جوړ د چا په انتظار کښې ولاړ معلومېږئ، ځکه چې زه څه سمه خبره کوم او په تاسو بده لږی.

ګلې: د خرابو خلقو مې سمې خبرې نه دی اورېدلی.

خېرې: مړه څه چرته د خبرو دپاره بل ځوک وګوره.

ګلې: او کنه يار خامخا زمونږ مازغه ولې خرابوې.

سعيد: اوهو په دې خبرو ستا مازغه خرابېږی، ځکه چې زما جېب تش دے کنه؟.

خېرې: دا مونږ درته څه سوالګری ښکارو څه؟

ګلې: سپی يو خو جرندې نه ځتو، ستا پيسو ته به چرې هم لاس ونه نيسو.

سعيد: او دا چې خورې ځکئ دا د چا دی.

خېرې: د چا خورو ځکو، هلکه ګليه! دا خو څه پاګل غوندې دے.

گلې: څه داسې معلومېږي لکه چې دده د کوره راله راغلی.

سعید: زما دا مطلب نه دے کوم چې تاسو نې رونړو. خو صرف د خپل کشر ورور وحید دپاره وایم. هغه د یو غټ پلار او مور زوے دے او تاسو په داسې ناکاره لار روان کړے دے. چې واپس کېدے نه شی. آخر تباه به شی او د خاندان ټول عزت به په خاورو کښې اوړلړلے شی. تاسو دا خلق به بیا تماشې کوئ او په ډنډه کښې به هغه خوار غوبې وهی. زه منت کوم، ستاسو په پښو لاس ږدم، چې زما د ورور نه قلار شئ، زمونږ د خاندان بې عزتی مه کوئ، زما د پلار ننګ او ناموس مه لاهو کوئ!

خېرے: ښه ښه ستا دا مطلب دے چې...

سعید: او کنه وحید خو هم تاسو په بده واړولو

گلې: هغه څه وړوکے خو نه دے چې مونږ ورته څه وایو او هغه منی.

سعید: ما ته دا پته ده، چې هغه هم ستاسو خبره منی. تاسو ډېر ښه هلکان نې او که چېرې هغه بدکار کوی، نو تاسو نې منع کوئ.

خېرے: عجیبه سړے نې کله مونږ ښه شو او کله بد.

گلې: مړه ما درته نه دی ونیلی چې دے پاګل دے پاګل

سعید: او کنه زه به پاګل ولې نه یم چې تاسو ته خو نه ښایم.

ګلې: ته څه داسې قاضی نې چې مونږ ته نصیحت کوې.

خېرے: هغه دے خان هم پخپله راغے پوهه نې کړه.

سعید: افسوس که هغه زما خبره منلے نو.

وحید: خیر دې وی ګلیه! خیریه څه شر دے؟

ګلې: سړیه ده بل څه کار پرهېښودے دۓ خو.

خېرے: په مونږ پسې راپسې شو دے پخیر شوې.

وحید: یار ستا زمونږ په کار کښې څه کار دے؟.

سعید: وحیده وروره! زهٔ ستا مشر ورور یم، زما دا فرض دی چې تاته خو نه وښایم باقی ستا خپل کار دے

وحید: ستا په شان مشران رونړه خو به زهٔ شل د ختمې جوړ کړم.

سعید: زهٔ په دې نه خفه کېږم وروره چې ته نې کوې، خو دا نه شم برداشت کولې چې ته سپك شې او بې عزته شې.

وحید: دا زما بې عزتی کول څه آسان کار دے، چې زما به څوك بې عزتی وکړی. خو له دې سمبال کړه.

سعید ما په دې غرض نه دی ونیلی کوم چې ته وائې.

خېرے: بنه نو په څه غرض دې ونیلی دی؟.

سعید: وحید خو زما ورور دے، د هغه عزت زما عزت دے، تاسو شیطانان خلق زمونږ د مینځ نه قلار شئ.

وحید: سعیده! ته نه زما ورور نې او نه درته زما پلار زوے وائې او بیا خیال ساته چرته چې زما ملګرو ته اونه ګورې ګنې

ښــه بــه نــه وي. ورخــه اوس ووك شــه. دا تــا څــه ملنــډه جــوړه کــړې ده، چې په مونږ راپسې شوې نې سرېه!

سـعيد کـوزي سـترګي د وحيـد او د هغـه د ملګـرو دلاسـه د کـوټې نـه راروان شـو، سـوړ اسـويلے نـې د خـولې نـه وختلـو. څـو څه نې کولے شـو واقعـی خپـل پـلار ورتـه زوے نـه وانـي او نيـا ورتـه نوسے نه واني نو وروړ به ورته وړوړ ځنګه ووائي.

بـل خـوا وحيـد ، ګلے، خپرے پـه خپـل مينـځ کښـي پـه ګپ شپ لګيا شول:

وحيد: ده له هم دا رټل پکار وو نو.

خپرے: دے په اشارو نه پوهيږي، د لوړ مسلمان دے.

ګلے: په داسې وخت کښې ناکام کول بې غيرتی وی.

وحيـد: زه بـه دده سـره ګـورم. انشـاء الله تعـالی دے بـه اوس زيات زمونږ په کور کښې پاتې نه شي.

خپـرے: يـره خانـه! کـه ددې مصـيبت نـه دې خـلاص کـړو. نـو ګليه وايه کنه خان هم راغے، اوس خپله مطالبه پيش کړه.

ګلے: څـه مطالبـه ده خـان، ښـه خبـر دے، نـو زه بـه نـې څـه خبـر کړم. ته ورته ولې نه وائي.

وحيـد: مـړه خـو پـه هـر شـی مـو شـر وی، څـه پروګـرام دے وائـې کنـه، جيـب خـو مـې هسـې هـم ډك دے، نـن مـې د مـور پـه مصـلحت انبـار مـات کـړے دے او پـه سـيټ مـې د دريې و سـوو روپـو غـنم خرڅ کړی دی. ورځ دوه بـه پـرې ښـه ګـذاره وشـی، خـو شـابه چرتـه ښه غوندې خائے ښائې.

خپرے: بس بس کار وشو، زما خو دا خیال و چې تش لاس یو.

گلې: د خان په سر کښې خیر غواړه خیریه!

خپرے: زمونږ خو هم دا یو خان دے نور څه دی.

گلې: ناوخته کېږی شابه خیریه پروگرام جوړ کړه.

خپرے: څه پروګرام دے خو ګلنار له به ورخو نو.

وحید: ګلنار څوك ده هلکه؟

ګلې: یره خانه! کمال کوې! ته ګلنار نه پیژنې؟

خپرے: مړه هسې خان نې نانګاره کړے دے، مونږ د سر نه نیسی.

ګلې: او رشتیا رشتیا کنه! خان او ګلنار نه پیژندل.

وحید: بنه نو څه وانې چې نن ګلنار له ورخو.

خپرے: یره خان! دا تماشه هم کول پکار ده کنه.

ګلې: او کنه په دنیا کښې خو یا نشه ده او یا تماشه ده، بې عمله ککړئ خو د خر وی د خر.

وحید: بنه ده نو ځئ چې خو ناوخته به شی.

(دوی په بنه ډول سنګار د ګلنار کلی ته روان شو. په لارې ورته بنه خوشامنده برامنده کېږی. خان ټوپی کلکه اینسودې ده د ګلنار دروازې له راغله، خیری وروډبولو، شمبو راووتلو:)

شمبو: څوك نې هلکه څه دې کار دے؟

خپرے: او هو شمبو یار خو شته دے.

ګلې: یاره شمبو څنګه ئې؟ ګوره شمبو دا زمونږ خان دے.
شمبو: ښه یم. ښه یم تاسو ښه ئې. څه کار مو دے؟
خېرے: عجیبه خبره ده ته لا تراوسه پوهه نه ئې.
ګلې: شمبو د خوبه ئې، ما خو وے کنه سترګې دې پټې دی.
وحید: خیر دے وارخطاء کوئ نې مه، چې په دمه شی نو تپوس به ترېنه وکړو.
شمبو: څه ګډې وډې وانی هلکو! زه درته لېونے ښکارم څه؟
خېرے: نه یره لېونی خو مونږ یو چې ستاسو دروازې ته راغلی یو.
شمبو: چې لېونی ئې، نو خپله لاړ نیسئ.
وحید: دوی هسې پاګلان دی شمبو. مونږ خو د ګلنار لیدو له راغلی یو هغه کور شته کنه؟
شمبو: په دې کښې د تپوس څه ضرورت دے چې زه کور یم نو هغه به خامخا کور وی.
وحید: ښه نو ورشه نو تپوس ترې نه وکړه وایه چې وحید خان د برکلی ستا څنګ ته راغی.
شمبو په منډه منډه کور ته لاړو او د ګلنار څنګ له راغے.
شمبو: نن خدائے غټ رحم وکړ.
ګلنار: ولې شمبو څه چل دے، څه رحم ئې وکړ، ته خو څه ساه نیولے غوندې معلومېږې؟
شمبو: خانان راغلی دی خانان.

**ګلنار:** څوك خانان دي، څه كار ئې دے؟

**شمبو:** د بركلي هغه وحيد خان دے پېژنې ئې كنه؟ ډېر مالدار دے، واني چې د ګلنار څنګ له راغلى يوو.

**ګلنار:** ورشه كنه رائې وله.

**شمبو:** ښه ده، ته جامې بدلې كړه او زه په منډه ورځم، چې خانان راولم. چرته لاړ نه شي.

شمبو راغے او د خان نې غتهه خوشامنده وكړه چې ګلنار تاسو ته پخير واني، تاسو په راتلو ډېره خوشحاله شوه، چې زه ژوندے يم، نو ګلنار به ستاسو همېشه خدمت كوى. دا ټول زما بركتونه دي وحيد سره د خپلو ملګرو د ګلنار كور ته راغے.

**ګلنار:** راځئ خانه راځئ څه چل وشو، چې مونږ غريبانان مو ياد شو.

**خپرے:** په ښكلو خدائے مين دے ګلنار.

**ګلے:** ستا د حسن او ښائست چوچو دلته كښې راوستو نو.

**خپرے:** دا خو نه خو خان ته ما ښودلې وه.

**ګلے:** څه خوار شې ټول كارونه زه وكړم او وانې ته چې خونه ما ښودلې ده.

**وحيد:** چپ شئ، اوس بې هوده خبرې پرېږدئ.

**ګلنار:** پرېږده خانه چې لګيا وى، آخر ستا ملګرى دى كنه، ماته خو دوى ستا په سر دومره درانه ښكارى چې...

خېرے: ته په خپله درنه نې، خکه درته مونږ درانه ښکارو.

ګلې: دا زمونږ خوش نصیبي ده ګلنار. چې تاته مونږ درانه ښکارو، کنه مونږ ته ګوره او تاته به ښکاربدو ته.

ګلنار: چې د وحید خان ملګری نې. نو زما د سترګو تور نې، دا مې غټ ارمان و چې دا خان به خنګ ووینم.

خېرے: زمونږ په سر کښې خیر غواړه ګلنار.

ګلې: چې یاران ژوندي وی، نو ډېر ارمانونه به دې پوره شي.

شمبو: خان څه خدمت وکړم حکم کوئ.

ګلنار: ورشه کنه شمبو د خانانو دپاره د چایو او چیلم انتظام وکړه.

شمبو زر لاړ او نشه، چانے. چیلم هرڅه نې وحید ته مخکښې کښېودل او دوی په څکلو شروع وکړه، چې بوتل نې تش کړ او د نشې نه نې سترګې سرې شوې، نه د خان نه خبر دی او نه د جهان نه، اوس دوی ټبه د ګلنار په قبضه کښې دی.

ګلنار: غټان خلق لکه دپشکال دسیلاب راشي او بیا لاړ شي.

وحید: هغه خلق چې د پشکال د سیلاب په شان خوني لري بې ایمانه او بې غېرته وی ګلنار!

ګلنار: خانه خفه کېږه مه. ما داسې ډېر لیدلي دی وعدې اوکړي او بیا نې پرې عمل نه وی.

وحید: زما دې قسم وی ګلنار، که زما په سر دې لاس کښېود، درنه به نې منع نه کړم.

گلنار: ماته ستا ژوند پکار دے خانه، چې ته ژوندے نې.
نو زه به ژوندئ یم او فخر به کوم.

وحید: زه په خپل قسمت ویاړ کوم گلنار چې تا زما سره د دوستانې وعده وکړه

گلنار: خو زما یقین نشته. چې ته به په خپله وعده ټینګ شې

وحید: د پښتو وعده وعده وی، وعده!

گلنار: او زه هم د یو پښتون بچی په خولې یقین کوم.

وحید: زه یو خل بیا د خپل خاندان په عزت قسم کوم

گلنار، چې په ژوند به ستا شیرینې سترګې هېرې نه کړم او درڅخه به جدا نه شم. دا مې وعده ده، چې تر عمره ستا شوم او ستا به یم

گلنار او وحید د یو بل سره د محبت وعدې وکړې. گلنار یوه ډمه وه په هره خبره کښې نې فریب او دهوکه وه، لیکن وحید د یو پښتون بچی په حیثیت د وعدې رشتینے او پابنده و په دې ورځې بنه مجلس وکړے شو، وحید خان د کوره وړے مال درې سوه روپۍ گلنار ته د دوستانې اولنے گل پېش کړ. گلنار په زړه کښې خوشحاله شوه، چې خان خو ژوندے وی. نو کار مې جوړ شو. وحید د نشې ډکې سترګې گلنار ته راواړولې.

وحید: گلنار! ستا د سترګو غشی مې رسا د زړه په سر دننه شو.

ګلنار: شکر دے خانه چې ته کومو سترګو بیمار کړې، اوس به دا سترګې همیشه ستا طرف ته کړې وي.

وحید: ګلناره! په تشو خبرو کار نه کیږي. زړه مې غواړي چې زما کلې ته راشې

ګلنار: لیکن هلته به زه ګذاره څنګه کوم خانه؟

وحید: ستا د هرڅه زه ذمه وار یم، اوس ستا نه څه پرده ده، د خپل پلار د مرګ بندوبست مې جوړ کړے دے، چې د هغه کار خلاص کړم، نو بیا به ستا سره نکاح وکړم.

ګلنار: د یوې ډمې دپاره څوك خپل پلار نه وژني خانه!

وحید: ګلناره! ته ډمه نه نې ښاپیرۍ نې ښاپیرۍ.

ګلنار: زه وعده کوم چې سبا به ستاسو کلی ته درشم او چې ته کوم ځاے ښائې، هلته ب اوسم، ځکه چې ستا سره مې وعده کړې ده.

وحید: ګلنار، زه به تر عمره ستا خدمت کوم

ګلنار: خدمت کول زما حق دے خان.

وحید: ګلنار په رشتیا به راشې وعده کوې؟

ګلنار: زما وعده پخه ده خان، انشاءالله تعالی سبا به درشم.

وحید: دا به دې په ما غټ احسان وی.

ګلنار: په محبت او دوستۍ کښې د احسان ضرورت نه وی.

وحید: ستا دا دوستانه به زما ژوند ښه کړی او زه به پرې فخر کوم، چې ما په دنیا کښې اول وار محبت وکړ او هغه

کامیاب شو. زه به غرور کوم، دوی به گپ شپ ولگولو ډېر وخت تېر شو، بنې وعدې ئې د یو بل سره وکړې، خان سره د خپلو ملګرو د ګلنار نه رخصت شو، خان پـه تولـه لار خاموشه او غلې غلې راغـې، د ملګرو سره ئې هډو لفظ بدل نه کړ، ځکه چې د ګلنار په غم کښې ډوب و. د هغې خمارو سترګو وېشتلې و. رنځور شو. اوس د ګلنار د محبت دپاره نور سوچونه کوی. چې ګلنار به څنګه خپله کړم. خپل وروز د کور نه څنګه بهر کړم، چې ګلنار سره واده وکړم. کله لونبدلې، کله پاڅېدلې نیمه شپه کور ته راغې. په کټ کښې پرېوتلو، خوب او آرام ورله کله ورتللو، چې تسکین ئې شوې وې اوس دده په زړه کښې د ګلنار محبت خانې جوړ کړې و، هرڅه ئې هېر وو، خو صرف ګلنار دده زړه کښې ناسته وه. کله به پرېشانۍ یوړو او ګلنار ته به ئې اواز وکړو ناڅاپه به بیا رابېدار شو، ګلنار به نه وه او یو سوړ اسوېلې به ئې وکړ، چې خدایه کله به سبا شی. رشتیا به ګلنار دلته کښې راشی او زه به سبا هغه بیا ووینم. دا به د خدائې پاك ډېر لونی رحم وی آخر په دې سوچونو کښې اوده شو.

# د خان کلے

بېګاه خان د ډېرو سوچونو نه وروستو اوده شوے و. سحر ناوخته راپاڅېده، وحید د خپلو چالاکو او چلبازو په برکت د پلار په مخکښې ډېر معتبر او مشهور شوے و. د خان دواړه ملګری خېرے او ګلے بیا د خان په انتظار کښې ولاړ دی.

ګلے: یره خانه! لکه د اختر د میاشت غونډې ورک نې. هډو ښکارې نه.

خېرے: مونږ دې په ګرځېدو سترې کړو او...

ګلے: پرېږده خیریه! خانان خلق د چا پرواه ساتی.

خېرے: او کنه دا خو د خانانو خلقو کار دے، چې واړه وی نو یاران وی چې په خپلو پښو ودرېږی نو ملګری هېر کړی.

وحید. خیر دي وي دا تاسو څه مذکور جوړ کړې دې. ما کله ستاسو د یاراني نه انکار کړې دې. زه خو هر خدمت ته تیار یم

گلې: یره خانه منم خو هم ستا.

خېرې او کنه په خانانو کښې خو هم دا یو خان دې. نو دا نور څه تش کدوان دی

وحید: خوشامندی مه کوئ، خو څه نوی تازه وائی.

گلې: څه ووایو خان، په خوله کښې مو ژبې دی نو.

خېرې: که خان دي خبر نه کړ، نو غټ بې غېرته به ني.

گلې: ښه ده خیریه! چي ته واني نو خبر به ني کړم نو.

وحید. دا مو څه دوسی جوړه کړې ده، خو رشتیا حال ووایئ کنه، چي څه چل دې؟

گلې: خان گلنار خو کلي ته راغلي ده کنه، خو که نن دي ولیده، نو حېران به شي، بېگاه خو هډو څه ښکاربده نه.

خېرې: زما نه خو ني هډو د خان رنګ هېر کړې دې. هائې هائې گلنار بیبگم او دي سو.

وحید. رښتیا! یره دا خو ډېره ښتنه ښخه ده، گوره څنګه لوظ ني پوره کړ دا خو به نن خامخا لیدل پکار وي، ځکه چي مونږ پسې دي کلي ته راغلي ده.

گلې: خان بیا هډو اوس تلل پکار دی، زما په خیال.

خېرې: او کنه خان، هغه به انتظار کوی چي دوی ښکاره

هم نه شول.

وحید: سوچ کوم چې خنګه ورله شم. خکه چې جیب مې تش دے، آخر تش لاس به خنګه د ګلنار خنګ له ورشم، بد به بیکاره شم.

خپرے: پیسې پیدا کول تاته څه شے بنکاری خان!

ګلے: دا خو نې د ګڅ لاس کار دے نو.

وحید: واقعی پیدا کول خو نې اسان کار دے، خو سوچ به هم کول غواړی چې دا داجی نه پیسې په څه بود کړم

خپرے: څه بهانه ورته جوړه کړه نو

ګلے: او کنه د بهانو خو ته ډیر مړنے نې مونږ چې به د سکول نه پټ شو، نو استاد صاحب ته به دې خنګه بهانه وکړه.

خپرے: مړه بنه پوهېږې، خو هسې مونږ قاره وې

ګلے: نه یره خان د دهوکې سړے نه دے خو ګرانه به وی خکه.

وحید: بس بس ماله چل راغے، زه به ورشم او خاص به د داداجی روپۍ راواخلم، تاسو خئ او لږ وروستو بیا راشئ.

دوی ددغه خائے نه رخصت شول، وحید په زړه کښې دهوکه جوړه کړه، چې پلار مې بې تعلیمه دے، دے د تعلیم په نومونو او کارونو څه پوهېږی، بنه په اسانه به نې دهوکه کړم وحید راروان شو، پلار نې په کټ کښې ناست دے.

وحید: دا جی! السلام علیکم!

خان: وعلیکم السلام وعلیکم السلام! څه دی وحید، بچیه' کالج ته نه ني تلې. څه دا خو ناوخته معلومېږی. کې طبیعت دې ښه نه دې، رنګ خو دې هم خراب غوندې دے.

وحید: طبیعت خو مې بالکل ټهیک ټاک دے دا جی!

خان: نو بیا ولې نه ني تلې؟

وحید: دا جی! زمونږ په کالج کښې پروفیسرانو د یوې ډرامې د جوړولو انتظام کړے دے او د هغې دپاره پرنسپل صاحب په حیثیت د یو خان د یو زوے زما نه پینځه سوه روپۍ غوښتلې دی

خان: بچیه! دا ډرامه څه شے دے؟

وحید: دا جی! دا یو داسې شے دے چې په کښې د ہر زیات سبق زده کېږی او په لیدو نې سړے نور هم د ہر ښه کارونه زده کولے شی.

خان: څه خو چې پکښې زده کولے شې نو پینځه سوه څه چې زر روپۍ به هم درکړم. هنه دا واخله روپۍ.

وحید: داجی د ہیره مهربانی. اوس به زه د ملګرو په مخکښې د سترګو غړولو قابل شم. (دوی په دې خبرو کښې وو. چې سعید راغے.)

سعید: السلام علیکم داجی!

خان: بیا چرته راغلې. هر وخت سلام دے او سلام د یو چرته بل څه کار دې شته کنه. وایه څه دی؟

سعید: داجی زما پین یعني قلم ورك شوی دی.

خان: نو زه څه خدمت وکړم. بې حیا بدتمیزه! هر وخت ستا قلم ورك وی او ورك وی.

وحید: او کنه سعیده دا جی بنه وانی، ته په دومره قلمونو څه کوې؟

خان: بې غېرته که درکښې سرپټوب وی نو دغه دی وحید ستا نه کشر دی. خو چې کار دار دی او غېرتی دی. نو پينځه سوه روپۍ مې د ډرامې دپاره ورنه کړې څه. قابل دی کنه قابل بچی مې دی!

سعید: د څه شی ډرامه داجی! زه خو ترینه خبر نه یم.

وحید: چپ شه بې حیا تاله شرم نه درځی د پلار په مخکښې داسې تپوسونه کوې.

وحید سعید له یوه دیکه ورکړه او تښ لاس نې رخصت کړ. په سترګو کښې نې اوښکې راغلې. خو د قسمت کار دی. څه به نې کړی وی. کور ته د خپلې مور خنګ له راغی.

مور: خبر دی بچیه! ته خو ژړغونی غوندې نې.

سعید: مورې! ښه یم.

مور: څه چل خو دی، په کلی کښې دې د چا سره جنګ وکړ که؟

سعید: نه مورې! زما څه حیثیت دی چې د چا سره به جګړه وکړم، خو قسمت په سپېره ووهلم.

مور آخر څه چل دے ته خو ووايه کنه ما نه خبروې؟

سعيد : قلم مې ورك شوے دے داجی ته مې ووے، نو وحيد له نې پېنځه سوه روپۍ ورکړې او ماله وحيد د قلم اخيستلو په خاني يوه ديکه راکړه، آخر ولې دا د بې غېرتئ ژوند تېر کړو.

مور ته مه خفه کېږه، چې زه هر څه په ډاګه کړم. خان دې هم په اور کښې ودرولے دے او زه دې هم. •

مور : غلے شه بچيه! دومره وخت مو صبر کړے دے، د صبر مېوه خوږه وی. ستا ورور پاګل دے خپل مال خرابه وی. خو ته هېڅ مه وايه، چې د خاندان عزت پاتې شی.

سعيد : اخر دې خاندان عزت زمونږ په سر کښې دے څه؟

مور : او بچيه! د قربانئ دپاره ډېر کم خلق پيدا وی.

سعيد : نو زه به اوس څه کوم.

مور : د قلم به زه بندوبست وکړم.

دوی د يو بل سره په خبرو خبرو کښې په ژړا ژړا پاتې شول. وحيد د پلار نه په دهوکه روپۍ ووهلې او ډېر خوشحاله شو، پلار نې هم خوشحاله شو. ځکه چې وحيد خپل مشر ورور له د پلار په مخکښې ديکه ورکړه او بې عزته نې کړو.

وحيد : داجی دا سعيد ډېر بې واکه شوے دے، زه به نې ټهيك کړم، ښه ده نو داجی زه کالج ته لاړم، ناوخته به شی چې پيسې حواله کړم.

خان: په مخه دې ښه شه بچيه! خان رسوه زر زر څه.

وحيد چې د پلار نه پيسې واخيستلې نو ګلے او خبرے هم د

وحید سره یوځای شول.

ګلې: دغه ده مني کنه ما وې چې راځي او تا وې چې نه راځي. څنګ دې خان اوس راغې کنه! د خر زویه هسې دې په چا یقین نه وي!

خپرې: او او د خوشامندګر زویه، دا خو ما وې که تا وې، چې وحید ګورې چې راشي.

وحید: بس کړئ هر وخت د جنګ نه وي.

ګلې: جي دې....دې...

خپرې: نه جي دې....

وحید: ماته پته ده، زه دواړه ښه پېژنم. دواړه ښه سړي ئي، ښه ده نو وائي کنه څه پروګرام دې، پیسې خو مې رابوتې کړلې.

ګلې: يره خانه خو ښه چل درته معلوم دې، بهلول ئي بهلول!

خپرې: ته څه خبر ئي دا خو زمونږ کمال دې کنه، چې سړي ته خونه وښايو، نو استاذ ئي کړو استاذ!

وحید: پرېږدئ دا خبري، څئ چې د ګلنار تماشه وکړو، ګلنار نن خان د مېنولو دپاره بیا سینګار کړې دې. هسې هم بو پې مخې ډمه ده او چې خان سمبال کړی. نو د ګنګروګانو په آواز ئي ډېر خلق لېونی ګرځي او دا خان ورته بل بو اجل نيولې ملاؤ شو، د ګلنار د ښائيست د آواز تېس په دنيا پروت و، وحید ئي په اول وار سوداني کړې او په عشق کښې اخته کړې و، نن وحید بیا د ملګرو سره ډک جېب د ګلنار

مجلس ته راغے.

گلنار: خانه پخبر راغلې، زه خو دې په طمع وم.

خبرے: مونږ چرته خپلې وعدې نه دی ماتې کړی گلنار!

گلے: او د وخت هم ډېر پابند یو.

خبرے: او کنه دا د راتلو وخت دے؟

گلنار: خپل خانے ته سرے هر وخت خی راخی، څوك به ترې تپوس کوی.

خبرے: آباده اوسې گلنار کنه مړه به و.

وحید: پرېږدئ گلنار دا خبرې څه مجلس جوړول پکار دی.

گلنار د خان د حکم تعمیل وکه او رقص شروع شو او په بنه انداز سره مجلس پوره شو. گلنار د خان په خوا کښې کېناسته.

گلنار: یره خانه! اوس مې دربانډې اعتبار پیدا شو، چې یارانه کولے بنې، ډېر بنه دې وکړل چې زمونږ د غریبو مجلس ته راغلې.

وحید: زه به څه وایم، زه لکه د ویشتلې مرغې د تلو طاقت نه لرم، زړه مې غواړی چې دلته پاتې شم.

گلنار: خان زړه په زړه ښکاره وی، زه د خپل محبت اظهار نه شم کولے، خکه چې چرته ستا غوندې غټ خان او چرته ما غوندې غریبه ډمه؟

وحید: چپ شه گلنارا دا هېڅکله مه وایه مینه او محبت یو دوه اسې خیزونه دی، چې دا د غریب او مالدار تمیز نه کوی.

ګلنار: زه ستاسو نوکره، په سر سترګو خاربږم. او ددې نه پس زه ستا او ته زما.

وحيد: ما وے چې زما وعده محکمه ده. ليکن انشاء الله تعالی ته به هم خپله وعده هېره نه کړې.

ګلنار: زما وعده په وعده خو که تا ټينګه کړه.

ګلے: يره خانه که دې خوښه وی نو تلل پکار دی.

خېرے: او کنه ګليه ډېر ناوخته شو.

وحيد: زړه خو مې نه غواړی، خو چې تاسو وائي نو لاړ به شو. ځئ چې خو واقعی ډېر ناوخته شو.

ګلنار: خان! بيا به کله راشې؟

خېرے: اوس خو زمونږ دا خائے دے دلبرې!

ګلے: (خان سره) د ماما کور مو خپل دے. چې جېب ډک وی، نو راځو به. ګلنار او خان د محبت په ډکو سترګو د يو بل نه رخصت واخيستلو کور ته راغے، خان د ګلنار په محبت کښې ډوب په سوچ او فکر کښې ناست دےاو نن نې جوړ کالج ته هم زړه نه کېږی.

سحر شو، خان د کالج نه پاتې شو. خکه چې د ګلنار د بنړو غشی نې په زړه کښې تېر و بېر پراته دی او خان په ژوندانه لکه د مړو په حال دے. دده پکښې بغېر ددې دوه وو دوستانو نه نور څوك وو. دغه خېرے او ګلے وو. چې د خان په غم غمګين او په خوشحالئ خوشحاله و بيا د بدمعاشئ او لوفرئ دپاره د خان خواله راغلل، خان په سوچ کښې ناست دے

دوی غلی غلی راروان دی.

ګلې: يره خانه! نن خو ډېر خفه معلومېږې.

خېرے: د ګلنار د آواز ګرنګ نې په غوږ کښې دے.

وحید: هم دغه خبره ده، کومه چې خېرې اوکړه.

ګلې: دا خو څه ګرانه خبره نه ده، بیا به ورشو کنه!

خېرے: ګلیه! دے خو د خان زوے دے څه زما او ستا په شان خو نه دے کنه، څنګ به تش لاس د ګلنار څنګ له ورشي.

ګلې: او دا خبره هم ټهیک ده نو.

خېرے: څه نه څه انتظام خو کول غواړی.

وحید: هډو څه په بند پیوند نه پوهېږم.

ګلې: خان بابا به ونه غولېږی څه؟

وحید: دا هره ورخ به څوک دهوکه خوری. ګلیه!

خېرے: چې غولېږی خان، هغه هره ورځ غولېږی.

وحید: ښه ده تاسو ځئ بیا به ملاو شو، اوس هېڅ نه کېږی.

ګلې: ښه ده نو خیریه څه چې خو.

خېرے: او یاره تلل پکار دی چې خان، خان له څه پیدا کړی. دوی ترېنه دواړه رخصت شول، ډېرې شپې ورځې په مېنځ کښې تېرې شوې. خان د ګلنار څنګ ته لاړ نه شو، په زړه نې د غم غوبل جوړ دے، چې څنګ به د خپلې معشوقې خواله ورشم. یوازې په فکر ناست دے دواړه ملګری نې راغلل، ګلی ورو غوندې غاړه تازه کړه.

خېرے: السلام علیکم! د خانانو خان له څه چل دے؟

ګلے: څه چل دے، خو د ګلنار غم نې ژړوی نو دومره وخت وشو او ورسره ملاؤ نه شو، تهیك ده کنه؟

وحید: او او بلکل تهیك ده، نه پوهېږم څه چل وکړم، حېران یم، په ما نې څه جادو کړے دے، نه مې څه روټئ خواته کېږی او نه مې څه کاروبار د لاسه کېږی. اوس څه وکړم او څه به کېږی؟.

خېرے: وایه کنه ګلیه! مونږ چې کوم څیز خوښ کړو نو بیا وی کنه!

ګلے: پرېږده مره د خان طبیعت خراب دےاو ته غول خورې، غول مه خوره.

خېرے: په دې کښې د خفګان څه دی، خو بیا به د ګلنار څنګ له ورشو کنه.

ګلے: او کنه دا خو دې ښه ووې څئ چې خو.

وحید: کور کول آسان دی ګلیه! خو اور بلول ګران دی. د غټ خان زوے یم تش لاس څنګ ورشم.

ګلے: نه کنه خان هر وخت څوك څه نه وړی.

خېرے: ته نه پوهېږې ګلیه! خان ښه خبره کړې ده، په تش لاس ورتلو سړے د ډېر بد ښکارېږی او بیا زمونږ خان! دے به څنګ تش لاس ورشی، که دے ورځی هم، خو مونږ به نې تش لاس منع کوو.

وحيد: خيريه ته بنه واني، خو څه وکړم پينځه سوه روپۍ خو مې د پلار نه په دهوکه راواخيستې، خو اوس نه پوهېږم او نه څه چل راځي چې څه دهوکه وکړم او داجي ته څه ووايم.

ګلې: يره خان! بنه پوهېږې، خو په مونږ نې واني نو

خېرې: د غټو جالو مرغوږو ته خو بنهٔ چلونه ورځي کنه.

وحيد: چې ستا غونډې ياران د سرې سره وي، نو د روپو څه کمے وي. يو چل راته معلوم شو. تاسو ځئ زه يو ځل بيا په خان ورځم. انشاء الله تعالیٰ دا وار به هم کامياب شم.

ګلې: خان خو بهانه بنه ټينګه کوه!

خېرې: وګوره چې روبې ترې نه کمې وانخلې ګورے.

دوی لاړل. خان بيا د خپلې حجرې مخه ونيوه. پلار نې په کټ کښې ناست دے. نور هم ډېر خلق د کلي راغلي دي. وحيد د راتلو سره غاړه تازه کړه، د غاړې تازه کولو سره خان وکتل. حيد نې وليده، واني:

خان: وحيده بچيه! څه دی نن دې بيا څه کار دے که؟

وحيد: داجي ترڅو چې سړے ژوندے وی ضرورت نه پوره کېږي.

خان: وايه کنه څه دی پکار دی.

وحيد: زمونږ په کالج کښې بلے ورځ مشاعره ده، د هغې دپاره انتظام کول غواړي.

خان: بچيه! دا مشاعره څه ته واني؟ ډرامه خو مې زده کړه.

وحيد: داجي د مشاعرې په مطلب تاسو ان پړهـ خلق نه

پوهېږي، که زه ئې درته بيان کړم، نو بې خايه به وي، خو لنډه دا چې په دې کښې د ملک غټ غټ شاعران راغونډ شي او خپل شعرونه وائي.

خان: نو ددې مشاعرې مطلب څه دے؟

وحيد: دغه خو چل دے کنه چې تاسو نه پوهېږئ. ددې نه خو غټ څيز هډو بل وی نه، ډېر سبق ترې نه اخيستلے شی.

خان: بيا خو مونږ له هم تلل پکار دی.

وحيد: نه داجی، دا صرف د کالج د هلکانو دپاره ده.

خان: ښه ښه، صرف ستاسو دپاره وی. مونږ بوډاګان پکښې نه پرېږدی، وايه کنه څومره پيسې دې پکار دی؟

وحيد: پرنسپل صاحب خو راته ډېرې ونيلې وې خو ما وے چې څلور سوه به پوره وی نو...

خان: يره بچيه! دا خو ډېرې زياتې دی آخر تاله هم سوچ پکار دے کنه چې دومره پيسې ولې لګوې.

وحيد: داجی سړی له خپل عزت ساتل پکار دی. د عزت دپاره دولت څه شے دے.

خان: او دا دې بالکل ټهيک خبره وکړه. په دنيا کښې خو اول عزت ښه دے او بيا دولت.

وحيد: او کنه دا جی زه هم دا کوشش کوم، چې عزت مې وشی او ستاسو نوم اوچت شی.

خان: ښه ده نو ته خو ښه هوښيار ئې هنه! دا څلور سوه

روپۍ واخله او که چرې نورې روپۍ دې پکار شوې. نو بیا راشه چې درکړم او په خپل تعلیم ډېر کوشش کوه. چې خدائے دې کامیاب کړی. هغه بل خو هسې هم بې کاره دے او لوفر دے

خان وحید له روپۍ ورکړې او د سعید غریب بیا څه ته ضرورت شو او غلے غلے لکه د سوالی راروان دے ګورئ څه غواړی:

سعید السلام علیکم! داجی.

وحید: وایه کنه بیا دې قلم ورك کړے دے که؟

سعید: نه وروره! کتاب ته مې ضرورت دے، په دوه روپۍ کېږی.

وحید: دا ته څه پاګل نې که څه چل دے، ته په دومره کتابونو څه کوې، د خپل څیز حفاظت هم نه شې کولے، لونې سړے نې خو بې فکره نې ورشه ته زما کتابونه اوګوره څنګه نوی پراته دی

سعید: ښه وانې وروره خو څه اوکړم چا رانه پټ کړې، زما څه قصور دے، که بې فکره نه وے نو کتاب به مې ولې ورکېدو.

وحید: دا خو دې لاغټه غلطی ده، کتاب هم د چا نه ورکېږی.

خان: سعیده! ورورډې ښه وانې کنه، دده په شان که تا هم په ډرامو او مشاعرو کښې حصه اخیستلے او دده په شان قابل دے، نو ما به درله دده غونډې لکه د مشاعرې دپاره روپۍ نه وے درکړے څه، خو بې کاره نې نو څه وکړم.

سعید: دا خو زما کتاب ته ضرورت دے فضول کار نه کوم زه.

وحید: لوفره په بازارونو کښې ګرځې او وائې چې فضول

کار نه کوم.

سعید: داجی! مشاعري نشته دے کنه ما به پکښي حصه اخیستي وه.

وحید: غلے شه بدزبانه! همېشه د بې وقوف سړی د بل په کار کښې کار وی، ستا په دې خبرو کښې څه کار دے. ورك شه چې کتاب ورکه وے، نو بیا خانله ګوره.

سعید دا خل بیا د پلار او د ورور دلاسه تش تور او سپك ورك د حجرې نه راغلو او د مور خواله د قهره ډك راغے.

سعید: مور دا ناکام نور نه شی کېدے، زه مجبور یم چې حال ووایم.

مور: ولې بچیه! ستا نه قربان شم څه چل دے.

سعید: نن بیا ماله وحید دیکه راکړه او د حجرې نه نې بهر کړم، صرف په دې چې زما کتابونه پکار وو او داجی نه نې پیسې په دهوکه خانله واخیستلې.

مور: پرېږده بچیه! ما وے چې چرته غټ کار وشو، دا خو څه دومره خبره نه ده، داسې سلوك خو زمونږ سره تل کېږی.

سعید: خلق متل کوی، چې سړے تنګ شی نو په جنګ شی.

مور: په قسمت خوار خلق نه تنګېږی بچیه! او نه جنګونه کوی څکه چې کولے نه شی.

سعید: عجیبه ده ته د خپل بچی سخته هم برداشت کوې، څنګه مور نې.

**مور**: دا خکه چې بیا په ما سخته راځي!

**سعید**: خوږې مور زه ستا نه قربان شم زما ژوند ستا نه قربان دے.

**مور**: نو بیا غلے شه هر څه پټ ساته غږ مه کوه.

**سعید**: بنه ده نو چې ته وائې کنه، زما غیرت خو هېڅکله دا نه شي لیدلے. چې زما ورور د خپل خاندان غیرت د خپله لاسه په خاورو کښېږدي. زما دې مخامخ بې عزتي کوي په حیثیت د یو ورور د .یو مقابل دازما زړه هېڅکله نه زغمي او نه ئې زما غیرت برداشت کوي، خو...

وحید هلته څلور سوه روپۍ د پلار نه واخیستلې او سره د خپلو ملګرو د ګلنار څنګ ته روان شو. دوی راورسېدل او وریسې سعید د خپله کوره په ډېره چالاکۍ او غلا بانديې پیسې راپټې کړې. خکه چې هغه دا لیده چې ګلنار ډمه صرف د دولت دوسته ده راشه چې په یو ځائې ورله پیسې ورکړم، سترګې به ئې مړې شي او زما د ورو نه به قلاره شي او هم دا یوه هیله د سعید په زړه د خاندان د عزت د بچ کولو راغله. سعید صرف په دې خیال اراده اوکړه، چې وحید زما کشر ورور دے او د خاندان عزت دے، کېدے شي چې دے یو نیک سړے جوړ شي. که چرې ګلنار ترې قلاره شي، دے لا په لارې و او وحید سره د ملګرو د ګلنار مجلس ته راغلی وو.

**ګلنار**: خیر دې وی خانه ډېرې ورځې پس دې پېښنه وکړه.

**وحید**: ګلنار زمونږ په سر ډېرې ذمه واری دی داسې

اوزګار خو نه يو کنه چې هره ورځ راشو.

ګلې: او کنه د غټو خلقو خو ډېر کارونه وي.

خېرې: او بيا زمونږ خان خو د پلاز خوښ زوې دې

شمبو: او کنه نو خان خو به بيا بالکل د پلاز نه نه وي وزګار، دا خو لا دې، دې چې زمونږ خواله راشي.

ګلنار: ورشه کنه شمبو د خان د چيلم خدمت وکړه.

شمبو په منډه لاړ او شراب نې راوړل. خان د خپلو ملګرو سره د شرابو په نشه کښې مست د ګلنار مجلس ته ناست دې. هر کله چې ګلنار مجلس ختم کړ. نو خان ورته په نشه کښې بې وقوف او د عقل نه پاك ښکاره شو. ګلنار د خان د شرمولو اراده وکړه، آخر نې خپله ډمګيرى ښکاره کړه او د يو ښه پښتون بې عزتى نې شروع کړه.

ګلنار: خانه! تاله خو به د بانګى آواز درځى کنه؟

ګلې: او ډېر ښه مونږ خو په ورو کوالى ډېر بانګيان جنګول.

خېرې: او بيا خان خو د چرګ په بانګ د پاڅېدو عادت دې.

وحيد: ګلنار که نه راځى خو ستا دپاره به هرڅه وکړم او د بانګى اوازونه نې شروع کړل: قى قى، قى قى.

ګلنار: بس بس خانه واقعى تاله خو ډېر ښه بانګ درځى. يو ارمان مې بل دې.

وحيد: وايه ګلنار چې هر ارمان دې پوره کړم

ګلنار: اوس د خر آواز وکړه.

وحید: دا خو ډېر آسان کار دے او د خر آواز ئې وکړه.
گلنار: شاباش شاباش! یره خانه د میلو ناچ خو به درخی کنه؟
گلے: ولې نه مونږ به مېله کښې د مېلو ناچ کتلے نه و څه؟
خېرے: خان خو د میلوگانو ډېر ښکارونه کړی دی
گلے: گلنار! ته هم عجیبه خبرې کوې، څه گران کار وښایه، چې خان ستا دپاره وکړی دا خو آسان کار دے.
اخر خان د مېلو ناچ شروع کړ او سعید په دې موقع راغے. خپل ورور ئې د هغې په مجلس کښې په گډېدو ولیدو او په زړه ئې اور بل شو، خو څه ئې کولے شو چې وحید خپل ورور دلته په راتلو ولیده، نو د قهر نه تك سور شو او په چغه شو.
وحید: سعیده! ته دلته څه کوې؟ څله راغلې؟
سعید: هغه پاك خانے ته راغلم، کوم له چې زما ورور راغلے دے، چې زمونږ د خاندان ټول عزت به ساتی.
وحید: بدتمیزه بد شعوره تا له هډو شرم نه درخی.
سعید: په دې کښې وروره د شرم څه دی، چې ستا غوندې یو ښه او نیك ورور یوخانے له راخی، نو هغه به څنگه بدخاے وی او زه به ورله ولې نه راخم.
د دې خبرې سره نور هم په قار شو او سعید له ئې په مخ یو گذار ورکړ، ته خو هډو په شرم نه پوهېږې، خپل حیثیت نه پېژنې او په منډه ئې د خپل کور لار ونیوه او خپل پلار ئې خبر که، چې زوے دې په ډمانو پسې گرځی.
خان د قهره ډك راروان شو او د گلنار کره راغے، دغه وخت

سعید گلنار ته منت کولو.

سعید: گوره گلنار ما نن په ډېر کوشش د کور نه دا روپۍ راپیدا کړې دی. دا واخله او خه چرته خپله مخه نیسه، نور زمونږ د خاندان بې عزتی مه کوه. گلنار زه درته سوال منت کوم، چې زما د ورور ژوند مه خرابوه. هغه د پلار ډېر نیازبین زوے دے، په دې کښې خان او وحید د ډمې کره راغلل. خان واقعی سعید د گلنار په مجلس کښې ولیده.

خان: گوره بې حیا تا خو د خپل خاندان نوم وشرمولو. زمونږ عزت دې خراب کړ. ته خو ډېر بې غیرته او بې حیا ئې.

وحید: داجی! دے هره ورځ دلته راځی

سعید: دا جی زه، خو...

وحید: اوس په زه خو، زه خو کار نه کېږیو ته لاهم خان ته سړے وائې.

خان: واقعی زما مور ډېره هوښیاره ښځه ده، ته او ستا مور هم دداسې سلوك قابل وئ. کوم چې هغه ستاسو سره کوی، خان په سعید یو څو گذارونه وکړل او چې کور ته راغے نو گلون غریبه ئې په کور کښې راحصاره کړه او سر ئې ورله مات کړ. په سر ئې وینې رابهېدلې، مور آبۍ هم ورته د مرچکو په ځتمه ناسته وه او نگهت وریسې خانله لور راواخیست.

په دغه وخت کښې وحید د پلار نه راواپس شو او په بېرته بیا د گلنار مجلس له راغے.

وحید وایه کنه ګلیه! څنګه چل مې ورسره وکړ؟
خپرے د سرېدو نه و. خالص شرمول ني رااخیستلی وو.
ګلے: د داسې خلقو سره هم داسې کار پکار وی.
خان چې خپل کور وهل ټکول وکړل. پښتنون سړے و. د خاندان په بې عزتۍ ډېر خفه شو او د خفګان نه ورته د زړه دوره شروع شوه. خان انخر ناني ته ووی. چې وحید ته اواز وکړه. خو وحید د خپلو ملګرو سره د ګلنار په مجلس کښې په ګپ شپ لګیا و او په دغه وخت کښې ورته انخر اواز وکه.
خانه! اے وحید خانه!
وحید: څه دی انخر ماما خېر دے، څه وشو.
انخر: د خان طبیعت خراب دے، زر کور ته راشه تا ډېر یادوی.
وحید: بس ده ته ورځه، زه دراغلم. هلکه ګلیه! چې په داجي څه وشو.
ګلے: بس هم دغه د خفګان وجه ده، څه ساه ډوبے به وی پرې.
خپرے: او کنه د خاندان بې عزتی خو هر سړے خفه کوی. سعید ډېر بدکار کړے دے، که زما پرې لاس رسېدے نو کار به مې ورله ختم کړے و.
وحید: تاسو کېنئ، زه ورځم چې تماشه وکړم.
وحید کور ته راغے، پلار ني په کټ کښې پروت دے، په زړه ني لاس ایښودے دے او انخر ته وانی:
خان: انخره وحید رانغے؟

انخر: اوس به راشي چري دا خانې به راروان و

خان: وروکې دې نه پوهېږې. د پلار سورې خومره بنه وي.

انخر: دغه دې خان راغې زر راځئ جي!

وحيد: څه چل دې دا جي خير دې اوهو دا څه وشو.

خان: وحيده بچيه! زړه مي خراب دې د پاتې کېدو نه يم.

وحيد: داجي! اوس خو د خدائې فضل دې ډېر ډېر غټ غټ ډاکټران موجود دي که مو خوښه وي نو لاهور ته لاړ شئ. هلته د زړونو ښه ماهران ډاکټران شته دې. ښه علاج به مو وکړي.

خان: او بچيه دا مي خوښه ده. خو داسې ښه خوئ کوه لکه چې څنګه دې دې، د نن هم پس د جائيداد حقدار ته نې. زما په جائيداد کښې د سعيد يوه کنجکه هم نشته. د لوفرانو هم دغه سزا وي، دې زما نه عاق دې، وحيده عاق دې.

وحيد: ډېره ښه ده داجي! زه وعده کوم چې زه به ښه کار کوم او د خاندان عزت به ساتم، اوس زه خم چې ستاسو د تلو دپاره بندوبست وکړم.

سعيد هلته کور ته راغې او مور ته نې ټول حال بيان کړ. چې وحيد راسره داسې چل او سلوك وکړ. اوس نه پوهېږم چې څه به کېږي.

مور: آخر ته قلاربدې نه کنه، ما ډېر پوهه کړې. ډنډه دې ولړله

سعيد: ليکن مور دا کار خو وحيد کړې دې

مور: دا هرڅه زه وينم او هرڅه وحيد کوي، خو قسمت زمونږ

ناکاره دے تاله په دې کارونو کنبې ګوتې وهل نه وو پکار.
**سعید**: ما خو هرڅه د هغه د فابدې دپاره کړې دی مور.
**مور**: لیکن زمونږ خبرې اورې څوك او منی څوك؟
**سعید**: حقیقت نه پټېږی مور! دا به یوه ورخ ښکاره شی.
**مور**: سعیده! ته زما زوے نې، زه هر وار تاته وایم چې ددې خبرې نوم په خوله وانخلې او ته نه قلارېږې نو عاق به دې کړم.
**سعید**: لیکن مور زه حقیقت څنګ پټ کړم.
دوی په دې خبرو کښې وو چې انخر ماما ور ووهلو او نازو راووتله.
**نازو**: ماما څه دی؟
**اینخر**: د خان حکم دے چې ګلون او سعید دې په دې ساعت زما د کوره وخی، چې سترګې مې پرې ونه لږی.
**نازو**: ولې ګلون غریبې بیا څه ګناه کړې ده.
**اینخر**: خبرې مه اړوه خان قار دے، هسې نه چې په خپله پسې راشی.
نازو راغله او ګلون ته نې په سرو سترګو د اینخر د خولې جواب ورې.
**ګلون**: وایه کنه سعیده، اوس به چرته خو چې ودانه دې په خان ورانه کړه.
**سعید**: دا خو د خدائے لونئے رحم وشو، د زندانه خلاص شو. څه چې د ماما کره خو هغه مو خپل کور نه دے څه؟

مـور: هغـه زمـا ډېـر ښـه ورور دے، سعيده خو کوره چې ما تر عمره وساتى، ډېر بد دې وکړل. خپل ژوند دې خراب کړ.

سعيد: څه چې په قسمت وو. هغه وشو اوس څه چې خو.

مـور او زونے دواړه وږی او تـږی د کـور نـه ووتـل. نـه مورآبـی او نه نګهت چرته يو لفظ د همدردۍ ووې، چې پاتې شی.

مورآبی: ورکېږئ آزار مرو چې ستاسو نه خلاص شو.

نګهـت: دے زمـا پـه زوی پـوري اوس دروغ جـوړوی. ملـك خراړو وران کړه او بدنام کارغان شو.

مورآبـی: خـئ وخـئ کنـه اوس بـه اشـرف خـان راشـی او بـې عزته به مو کړی.

نګهـت: پربـږده ابـی چـې راشـی چـې ددې ګناه څـه سـزا خـو ورله ورکړی کنه.

مـور او زوے يکتنهـا د کـوره ووتـل، څـه ډېـر وخـت پـس د ماما کلی تـه ورسـېدل، مامـا نـې خبـر شـو، چـې ګلون او سعيد راغلـل د هغـه پـه زړه کښـې شـك پيـدا شـو چـې بيـا څـه چـل دے. حـيـران او وارخطا شو، کور ته راغے چې حال معلوم کړی.

سعيد: ماما جی السلام عليکم (په سرو سترګو سره).

ماما: ګلون څه شوه بچيه! پخير راغلې.

ګلـون: وروره زمـا سـلام دے، خلقـو رشـتيا ويلـی دی. چـرګې که ګرځې ګرځې خو ځائے دې کنډول دے.

قباد: آخر څه چل وشو خو ما خبر کړئ کنه.

مور او زوي ورته ټوله قصه په ژړا ژړا وربيان کړه. د قباد خان هم مرۍ وچه کلکه شوه او په مخ ئې د اوښکو سيلاب روان شو په ژړغوني اواز ئې وونې:

قباد: ګلون! ته زما خور نه ئې خو زما مور ئې او سعيد زما وړوکے ورور دے. ما خو درته اول ونيلي وو چې په کور کښې دې ګذاره ګرانه ده. ښه ده چې ژوندئ ئې. خو خپل کور ته راغلې اوس يو دا کور دے. چې زه ژوندے يم نو د سعيد پلار ژوندے دے. او ددهٔ د تعليم زه ذمه وار يم، هيڅ پروا مه کوئ!

ګلون: ته زما د زړه قطره ئې وروره! ما خپل زوے ستا جولئ له راوستلے دے. اوس ته پوهه شه او دے. زما خو هسې هم څه لږې ورځې په دنيا دی. غمونو مې وجود خاوري کړے دے د ژوند مې هيڅ څه اميد نشته، خو څه خدائے شته چې ته ژوندے ئې. نو زما څه غم دے او زما د زوی څه غم دے.

هلته وحيد زر تر زره د خپل پلار د رخصتولو انتظام وکړ او خپل پلار ئې لاهور ته رخصت کړ. سعيد او مور ئې هم د کوره ووتل اوس وحيد ته لار بالکل وزګاره شوه، هغه د خدائے نه نور څه غوښتل. ښه موقعه ورته ملاو شوه، ښه په جوښند کښې ناست دے، ياران ورله راغلل.

ګلے: خبر دې وی خان! نن ډېر خوشحاله ئې.

وحيد: ولې به خوشحاله نه يم. کومې غنے چې مې په سترګو کښې غړېدلې هغه درکے شوے.

خېرے: څنګه چل وشو؟

ګلے: ولې ته خبر نه نې، مشر خان ولګېده سعید او مور نې د کوره وشړل.

وحید: هغه پرېښوده مړه، خو غټه خطره مې د پلار نه وه. هغه مې هم لاهور ته رخصت کړ.

خېرے: ګورے که د هسپتال نه واپس راشي یقین مې پرې نشته، یره خان! دا لقمان حکیم په شان غټ کار دې وکړ.

ګلے: خان خو هوښیار سړے دے کنه!

وحید: ښه ده نو اوس ځئ تاسو او سبا به که خبر وی نو د ګلنار څنګ ته ورشو اوس خو مې هېڅوک نه شي بندولے. زه به اوس د خپلې محبوبې سره په داږه مېټ واده وکړم او انشاء الله تعالی به خپله وعده پوره کولو کښې به کامیاب شم. شپه تېره شوه، سحر شو یاران راغلل او د وختنه نې خان له د لرې ځائې د جوړولو پروګرام جوړ کړ.

ګلے: یره خان چرته سیل کول پکار دی.

خېرے: مړه ښکته ځوك ځی ګرمی ده ګرمی.

ګلے: چې پیسې او دولت وی، نو ګرمی څه کوی.

خېرے: هسې د لارې تکلیف خو وی کنه.

ګلے: ښهٔ په مزیداره سورلی کښې خو کنه.

وحید: مړه د سیل ورځې خو لا نه دی.

خېرے: خان د سیل دپاره څه وخت مقرر نه دے خو.

ګلې: او کنه چې کله د چا زړه وشي نو.
وحید: بنه ده نو چرته مو زړه کېږي.
ګلې: دا خلق د کراچۍ ډېر صفت کوي نو.
خپرې: نه مره کابل يخ خاے دے، بنې مېوې پکښې هم شته.
وحید: ستاسو د دواړو صلاح مې خوښه نه ده، وزګار وخت غواړي، اوس خو زه د ګلنار د محبت نه، نه يم وزګاره.
خپرې: ګلنار څه تختی نه چې لاړه به شي.
وحید: که هرڅه واني خو زه اوس چکر ته نه يم وزګار.
خپرې: ګلیه! د خان طبیعت مه خرابوه، چپ شه.
ګلې: او کنه دا خو د خان د مرضۍ خبره ده، زمونږ څه کار دے.
وحید: دا خبرې کوه کنه په کراچو پسې څوك ګرځي.
خپرې: يره ګلې کم عقل دے، خان خو يوه نيمه خبره داسې وکړي، چې د سړي زړه خوشحاله کړي.
وحید: خار شم د ګلې نه رشتيا ګل محمد خان دے.
خپرې: نن خو به مو جيب ډك وي کنه؟
وحید: سحر مې د دولت خان ماما نه د پټي په سر پينځه زره روپۍ رااخيستې دي.
ګلې: ايله پينځه زره روپۍ.
خپرې: خانه واقعي ډېرې کمې دي، پټي خو ډېر ګران دي.
وحید: نورې به راواخلو کنه، زمونږ پرې څه کېږي، د

خدائے فضل دے پتی ډېر دی زمونږ د ژوند به وشي.

ګلې: پاڅئ چې خو ناوخته کېږي.

خېرے: خان تیار دے څه؟

وحید: زه بلکل تیار یم، ځئ چې خو

دوی نن بیا په جمع د ګلنار مجلس ته راغلل. بنه په شان شوکت سره ني د ګلنار مجلس وکړ او شراب کباب اوخوړے شول.

ګلنار: خیریه نن خان ډېر خوشحاله دے.

ګلې: ستا د بنړو غشی نې به زړه باندي لګېدلی دی

خېرے: ولي به خوشحاله نه وی تول جائیداد ورته پاتې شو.

ګلنار: دا څنګه؟

خېرے: خان نې لاهور ته رخصت کړ او ورور او مور نې د کور نه وشړل، لاوزګاره شو.

ګلې: ولي ګلنار ته خو څه په فکر غوندې شوي. زمونږ دا چل دې خوښ نه شو څه؟

ګلنار: زما او ستاسو کار نه خوښېدل خدائے دې نه کړي.

وحید: ګلنار! زه به اوس خپله وعده پوره کړم.

ګلې: د ګلنار نه تپوس وکړه، چې ددې خپله وعده یاده ده که نه؟

ګلنار: زما خو خپله وعده بنه یاده ده، خو که خان خفه کېږي نه نو لږې ورځې دې صبر وکړي.

خېرے: صبر دے صبر، زمونږ څه داسې تادی ده.

**گلۍ:** او کنه خو لیدل کتل دي هغه هسي هم کېږي.

**وحید:** په هسي لیدلو کتلو کار نه کېږي. خپله وعده پوره کړه.

**خېبرے:** خان د دومره تادي څه ضرورت دے.

**گلۍ:** خېبرے بنه واني خان هرڅه په دمه کېږي.

**خېبرے:** کېدے شي چې گلنار څه خپل ساز و سامان پوره کوي.

**گلنار:** او زما هم دغه خیال دے چې خان جوړ کړم.

**وحید:** خه یره، څو شپې ورځي به بیا ناکام وکړو.

**گلنار:** د ناکام پکښې څه سوال دے، خان ته منع کړے چا نې، هر وخت تلے راتلے شي. ستاسو صرف زما لیدل ارمان دے او ستا په راتلو کښې ما انکار کله کړے دے.

**خېبرے:** یره خان، گلنار د شك ښځه نه ده.

**گلۍ:** او کنه که څه شك پکښې وے نو دا به دي کلی ته نه وے راغلې.

**وحید:** ما خو د شك هډو څه ونیلی نه دی. مړه تاسو په کښې ولې ډکې وهئ. خبره تهیك کړئ بیا نې بغېر د شرشم کولو نه، نه پرېږدئ.

**گلنار:** نه دا خو ستا ډېره خیرخواهي او همدردي ده خانه!

**وحید:** زما څوك خپل دی چې ماته داسي لار وښاني. گلنار بغیر د دوی نه دا نور خو زه هسي گپ لگوم.

بنه گپ شپ ولگېده، خان پوره پېنځه زره روپۍ گلنار ته کېښودي. گلنار یوه چالاکه ډمه وه، پوهه شوه، چې خان لوفر

دے، که زه دده سره واده وکړم، نو هسې به لاړه شم. مال به دے خراب کړی او زه به خبرات تېرلوم. دے هسې هم زما په قبضه کښې دے، په یو ځو ورځو کښې به ترې مال ختم کړم. نو دے به پخپله زما سره خلاف ورزی اوکړی او د شرمه به رانه لاس اوچت کړی، نو هم خرما او هم ثواب. آزاده ښځه به پاتې شم او مال به هم ووهم. ګلنار پاتې شوه او دوی ترې نه خوشحاله خوشحاله خپلو خپلو کورونو ته راغلل.



# عذرا

ګلون او زوے نې د قباد خان کره مېشته شول. قباد خان يو نيك او پوهه سړے و، هسې هم په دغسې خور منين و او لا ښه نې ورته پام په دې و، چې دا ورته ډېره نيکه ښخه ښکارېده. دا هم ورته معلومه وه. چې زما خورنے خومره نيك او ښه هلك دے، نو کله کله به نې د دوی په قسمت افسوس هم اوکه.

عذرا بی بی هم د پېغلتوب په دور کښې داخله شوې وه، د قباد خان ډېره خوښه لور وه. عذرا هم ددې ترور په شان يو نيك سيرته او هوښياره جينۍ وه، ډېره کارداره او د پلار و مور په همدردۍ پوهه پېغله وه. هسې هم د پلار په کور خوشحاله وه، خو چې د کله نه ګلون او سعيد دې کور ته

راغلی دی، نو عذرا د خپل معمول نه بدله غوندې ښکاري او ناوزګاره ناوزګاره وی، دسحر وخت دے مور نې کار کوی.

مور: عذرا یا عذرا.

عذرا: هاو ابی راغلم څه وے، څه کار دے که؟

مور: او کنه بچیٔ ته راشه، زه به چاۓ تیار کړم او ته لوښی صفا کړه ناوخته دے.

عذرا: ښه ده ابی راغلم، خو لږ صبر وکړه.

ګلون: څه وے ورندار که څه کار دې وی نو زه به نې وکړم، عذرا وړه جینی ده، د پلار په کور جینکیٔ کار نه کوی.

ورندار: پرېږده خور چې د پلار په کور جینکیٔ کار داري نه شی، نو بیا به کله کار کوی.

ګلون: ښه خو دې ووے، خو دا یواځې ستا لور نه ده چې ته به پرې داسې حکم کوې په دې زما هم حق دے.

ورندار: دا خو ستا لور ده خور ستا.

ګلون: ډېر ښه خوښی نې دے، خدائے دې ژوندیٔ لری. عذرا یا عذرا څه کار کوې، مور دې آواز کیٔ.

ګلون ورغله چې عذرا څه کار کوی داسې مصروفه ده، مور نې ورته چغې وهی او دا غږ نه کوی. څه ګوری، چې هغه لګیا ده د سعید کتابونه برابروی او دوړې ترې ټک وهی.

ګلون: څومره ښه ښځه نې بچیٔ، کنه مونږ خو ستاسو دې کور ته په ناچاریٔ راغلی یو، او ته لګیا نې هغه له کتابونه

برابر کوي، پرېږده پرېږده خدائے دې په تا داسې کار ونه کړی. هغه له به کار زه کوم، زما حق دے، دا ستا د پلار کور دے دلته به مونږ تاسو له خدمت کوو، ستا د سترګو نه زار شم.

عذرا: ترور بی بی! ته زما مور نې ماته د مور نه کمه نه ښکارېږې، مور مې راته ونیلی دی، چې ترور دې هسې هم سترې ستومانه ده، د خاوند د کور نه راغلې ده، چې دلته نې ته سترې نه کړې. سعید له ښه په ایمانداری کار کوه او د مور حکم منل خو زما فرض دی، بیا د سعید خدمت کول خو زه خپله خوشی قسمتی ګڼم.

ګلون: هائے افسوس بچې! زمونږ دومره قسمت کوم دے. چې مونږ له به څوك خدمت وکړی، مونږ له چې چا کارونه کړی دی، هغه هم زمونږ په شان د بدقسمتی د سیېږې نه، نه دی بچ شوی. ستا نه قربان شم، زه په دې یرېږم هسې نه چې ته هم زمونږ په شان په خراب قسمت واوړې.

عذرا: مور او ترور یو شے وی ترور بی بی. ته هرڅه چې وانې، خو زه به سعید او تاله خدمت کوم، په دې خو مې داجی هم ډېر خوشحالېږی او دا راته وانی چې ترور دې درنه خفه نه شی.

ګلون: زما خو هم دغه ورور دے، عذرا که دے نه دے نو مونږ به څنګ دې کور ته راغلے وے.

عذرا: ولې ترور مونږ نه وو څه.

ګلون: او بچې ستا مور خو هم زما ډېر خیال ساتی، ډېره

به بنځه ده، چې ستړې نې نه کړې.

عذرا: ولې به نې ستړې کوم، مور او لور خو بنې خوند کوي، چې لور مور او نه ساتي، هغه به څه لور وي.

ګلون: بنه ده خه ته ورشه هغې له څه کار وکړه، سحر وختي پاڅېدلې ده، عاجزه په کار ستړې شوه، ما خو ورته ډېر اووې خو وانې چې قسم مې کړے دے، تا باندې کار نه کوم. د خاوند د کور نه ډېره تنګه راغلې نې دا څه شپې ورځې دې د ژوند پاتې دي، دا په ارام تېرې که. دا ستا د پلار کور دے، خدمت به زه کوم، خکه چې د خاوند کور مې دے، هلته به دې ډېر خدمتونه کړي وي. دلته دې درباندې کلک خوزول حرام دي.

عذرا: بنه وانې کنه ترور بې بې دلته ستا د کار کولو حق نشته څه خدمت چې دې وی مونږ ته وایه!

ګلون: خدائے دې تاسو ټول په حيا او عزت ساتی. مور دې هم ډېره بنه ده، ته هم نېکه بنځه نې او د ورور خو مې هډو ثانی نشته. خدائے دې ورله ډېر شته د حلالو ورکړی. خدائے دې ورله آته واړه جنتونه ورکړي، خه ته ورشه چې مور دې څه وائي.

عذرا زر زر راغله، د مور نه نې تپوس وکړ. مور څه دی داسې چغې وهې، ما وے چرته ګورے د تخنبتېدو شك دې راباندې راغے که.

مور: نه نه دومره د وارخطائی خبره خو نه ده، ما وے چې

څه شوي

**عذرا**: نو آخر څه دې ونيلو او وايه كنه چې كار درله وكړم.

**مور**: ما وې چې لوښي به وويـنځې او كـه د سـعيد اسباب څه ګډوډ وي، نو هغه ورله برابر كړه.

**عـذرا**: لـوښی راكـه چـې ويـنځم او اسـباب او كتابونـه مـې هغه له برابر كړي دي. هغه دي تيار دي.

څه لږ وخت وروسته سعيد رادننه شو، "مور يا مور"

**ګلـون**: هـاو بچيـه راځـه سـتا د سـترګو نـه زار شـم، راشـه چائـې تيـار دې اوڅكـه او بيـا سبق لـه ځـه. دے د خپلـو كتـابونو تيـارولو لـه راغـې، خـو چـې كلـه دے كمـرې تـه دننـه شـو، نـو سمدسـتى وريـسې عـذرا راغلـه، د پښـو كښـا شـوه، سـعيد خيـال وكـه، چـې مور مې راغله.

**سعيد**: مور يا مور دا كتابونه چا برابر كړي دي؟

**عـذرا** د خنـدا شـنه شـوه، بچيـه دا مـا برابـر كـړي دي، سـتا نـه زار شـم. سـعيد حيـران شـو، وشـرمېدو او غلـې غونـدې شـو، بيـا څه وخت پس موسكې شو او په وينا شو:

**سـعيد**: خـو ډېـره شـيطانه نـې عـذرا! دا ورانـې دې لا د سـر نـه نه دے وتلې، اوس خو لويه ښځه نې دا شيطانی پرېږده.

**عذرا**: كتابونه برابر كول شيطانی ده؟

**سعيد**: نه نه كتابونه برابر كول نه! دا غلی غلی راتلل.

**عـــذرا**: زه خـــو بـــه راځـــم كـــه څـــوك خفـــه كيـــږي او كـــه خوشحالېږي، زما د پلار كور دے.

سعید: او زما د ماما کور دے، که ته نره نې نو د خپل ماما کره لاړه شه.

عذرا: پرهېږده اوس دا خبرې ناوخته دے. زه درله چائے راورم، وخکه او بیا کالج ته څه ناوخته کېږي.

عذرا په منډه منډه چایو له لاړه، سعید ورپسې سر د دروازې نه بهر کړه، بیا ورو غونډې کېناسته او زر زر نې څه نور خیالات زړه ته راغلل. عذرا ښومره ښه جینۍ ده څومره ښایسته ده، د څومره ښه او شریف مور و پلار لور ده، دا څومره خدمتګاره ده، آخر ددې زما سره دومره همدردي ولې ده؟ دا څنګه کېدے شي په دې سوچ سوچ کښې سعید داسې ډوب او غرق شو، چې سوچ نې په زوره زوره خبرو کښې بدل شو: څومره خوش قسمته زلمے به وی هغه چې عذرا نې کوجدن وی او د عذرا غونډې ښځه ورته کور کښې ګرځي، عذرا ته څومره ښانسته نې، ته زما د زړه ارمان نې، ته زما د ماما د کور ژوند او روح نې. په خبرو خبرو کښې عذرا شاته رارسېدلې وه.

عذرا رو غونډې وخندل او بیا نې د سعید په اوږه لاس کېښوده، لېونے کېږه مه سعیده! عذرا داسې وړه جینۍ نه ده. چې د چا ښخوالی کوی، دا خیال دې غلط دے، هنه چائے مې راوړه.

د سعید غریب مرئ وچه شوه، ساه نې لنډه شوه، د شرمه تک سور شو، چې دا څه وشو، اوس به څه کېږي، دا یو شریفه کورنۍ ده، ما له دا سوچج نه وو کول پکار، عذرا خو زما د

ماما عزت دے، زه به هغه ته خومره بې غېرته او بدتمیزه ښکاره شم، هسې نه چې عذرا هغه ته حال ووائي ډېر بد به وشي

سعید په تادئ تادئ چائے د مرئ نه تېرې کړې. کتابونه ئې د ترخه کړه او په منډه د کوره ووتلو. په دروازه کښې پښاه کېده، چې عذرا پرې اواز وکړ.

عذرا سعیده یا سعیده! هغه د کالج اوږد کوټ دې پرېښودلو. ما خو وے چې ته به چائے وڅکې او زه ب درله کوټ پاك کړم. نو بیا به ئې، ولې ته داسې په منډه لاړې.

عذرا خبره ختمه کړه. خو سعید هېڅکله هم په بېرته ونه کتل او نېغ کالج ته لاړه. ټوله ورځ ئې په دې تصور کښې تېره کړه، چې څه به کېږی. په څه سترګو به عذرا ته مخامخ کېږم. خو چې د عذرا وروستی غږ به یې خال ته راغې. نو دا تصور به ئې وکه چې جوړې زما خبرې ئې نه دی اورېدلی. خو بیا ئې سوچ اوکړ، چې دا چرته هم نه شی کېدلے هغې هرڅه اورېدلی دی کنه ماته به ئې ولې وے چې عذرا هېڅکله د چا ښځه کېدے نه شی. دا الفاظ د هغې په خوله ولې راتلل او څنګه راتلل؟

دلته عذرا کوټ په لاس په منډو کښې پاتې شوه او بیا څه شېبه وروسته کمرې ته راغله، هغه په دې سوچ کښې شوه. چې ګنې سعید زما په خبرو خفه شو ما بد وکړه. ما له داسې الفاظ نه وو پکار. خو خیر چې څه وو هغه وشو. هسې نه چې سعید دا خبره خان ته اوږده کړی او د کور د راتلو نه قلار شی.

زه به څه کوم. ما ته خو به ژوند تېرول ګران شي. خدايه څه دي وکړه، آخر په يو کور کښې د حسن او عشق يوځايې کول. د پښتنو غلط رواجونه. د ترور زوی او د ماما لور او د هغوی محبت توبه توبه، دا خو د رواج په نظر کښې يو لوئي جرم دی. دومره ناکام به زه څنګه اوکړم، دا هېڅکله نه شي کېدی. هغه به کور ته خامخا راځي، زه بغير د سعيد د ليدو نه وخت نه شم تېرولی. دا ډېره ګرانه ده او په سوچ کښې د عذرا د سترګو نه اوښکې رواني شوې.

ګلون: خير دے عذرا څه چل دے؟ رنګ دې هم بدل غوندې دے او په ژړا هم ښکارې. سعيد خو درته څه نه دی ونيلی کنه؟

عذرا: نه ترور سعيد ماته هېڅ نه دی ونيلی.

ګلون: نو بيا ولې ژاړې، د ژړا څه خبره ده. عذرا هسې يو خيال مې زړه ته راغے او په ژړا شوم. ما وے چې د سعيد دا پلار هم څه پلار دے، چې دے ئې د کور نه ويستلے دے او ته ئې نه ئې خوښه. آخر ستا نه ښه ښځه او د سعيد نه ښه زوے بل چرته دے ترور بی بی!

ګلون هم هټکو ونيوله او په سلګو شوه. عذرا ستا دا مينه محبت به سعيد له ژوند ورکړی. د هغه د خدمت هېڅوک نه وو. زه بودۍ يم دومره توان مې نشته. خو سعيد د خدائے او بيا ستا په حواله دے لورې. ته به ئې خدمت کوې.

عذرا: ته غم مه کوه ترور بی بی! د سعيد څه خدمت دے،

خو د چاے ـ ډوډۍ بندوبست دے او جامې تيارول دى. دا څه دومره ګران كار نه دے. زه به ئې كوم، هغه دے سعيد راغے.

سعيد راغے كوزې ستړګې كمرې ته لاړو. څه وخت وروسته عذرا ډوډۍ رااخيستې راغله، مېز ئې جوړ كړو. اوبه ئې واچولې، شاته ودرېده او غلې غوندې ئې غاړه تازه كړه، ځكه چې سعيد هغه شان زوړند نيولے دے او په كوزو سترګو لګيا دے ډوډۍ خورى.

عذرا: دا سحر داسې په غړنګ ولې ووتې، ما درله كوټ پاك كړو او ته بيا لاړې په شغ شوې، ما خو څه ناوخته كړے نه و؟

سعيد: زما خو هډو كوټ ته فكر نه و. خو چې كالج ته لاړم، نو ياد مې شول چې اوهو كوټ رانه هېر شو.

عذرا: واقعى ډېر بې فكره تلے وے، كنه ما خو درته ډېر غږونه وكړه، خو شايد يو آواز دې هم وانه ورېدلو.

سعيد: او ما يو هم نه وو اورېدلے، ګنې خامخا به راګرځېدلے وم. ځكه چې كوټ ورل خو ډېر ضرورى څيز وى عذرا!

عذرا: كه ضرورى وے، نو ته به راګرځېدلے وے، خو ضررورى نه و كنه.

سعيد: قسم په خدائے ډېر ضرورى دے.

عذرا: بنه څه پرېږده اوس د كوټ خبرې سحر چې ما چاے راوړه، نو تا څه سوچ كول،، زه دې په سوچ كښې د چا ښځه كړې وم او په ما دې څوك منين كړے و؟

سعید: بس که نامردي، ددې شرمه خو رانه کوټ پاتې شوے و کنه ستا اوازونه مې ټول اوریدلي وو.

عذرا: په دې کښې د شرم څه دی. محبت کول څه جرم نه دے سعیده! مینه او محبت خو یو پاکه رشته او جذب ده، خو خدائے دې پښتانه میرات کړي، دوی ترې ناجایز شے جوړ کړے دے. کنه دا څه خبره ده، چې هلك او جینۍ دې په خپلې مرضۍ واده وکړي.

سعید: زه ستا په مطلب پوه نه شوم؟

عذرا: خیال مې دا دے چې که چرې ستا پلار او سرور بی بی په خوښه واده کړے وے. نو اوس به ولې تاسو ته دا تکلیف پېښ وے.

سعید: نه هغه خو دا خبره نه ده، په هغې کښې بل څه واقعات دی، ته ترې نه ئي خبره.

عذرا: داسې هم څه خبره ده، چې زما نه پټه وه دا کله کېدے شي، زه خو د هر څه نه خبر یم.

سعید: ته هېڅکله هم نه ئې خبر عذرا! دا یو ډېر ژور راز دے، ته نه پوهېږې.

عذرا: نو بیا خو به ئې ماته خامخا وائې، زه دې نه پرېږدم.

سعید: دا زما د مور د عزت سوال دے، هغې ماله په خپل عزت قسم راکړے دے، زه د هغې سره کړي وعده چرته هم نه شم ماتولے ما له لږې اوبه راکړه ترې شوے یم.

عـذرا: هـن اوبـه واخلـه وڅکـه، خـو پرهـېزدم دي نـه، ماتـه بـه حال خامخا واني، زه تا له د خپل محبت قسم درکوم.

سـعيد حـبران غونـدي شـو، د خپـل محبـت قسـم راکـوي عـذرا يـو وار بيـا ووايـه، مـا وې چـې يـوازې زمـا پـه سـترګو کـې لـېـچ غوړېږي، خـو بنـه ده چـې دا تکليـف تاتـه هـم دے، شـکر دے خدايـه چـې بـه دې غـم کنـبې عـذرا هـم زمـا سـره شـريکه ده عـذرا! زه پـه چـېـل محبـت فکـر کـوم، ماتـه پـه دې فخـر دے، چـې زمـا محبـت د يـوې ښکلـې، ښـائسـته، شـريفې او خـپلې رشـتـه دارې جينـۍ سـره دے

عذرا: پرهېزه دا! د دې خبرو وخت نه دے حال ووايه

سـعيد: عـذرا تـه مـا پـه دې نـه شـې مجبورولے چـې زه تاتـه حـال وايـم، ښـه هـم دا چـوره ده، چـې درتـه د خپـل زړه حـال بيـان کـړم، دا زمـا د پـاره پـه ژونـد کښـې يـو ډېـر ګـران کـار و، چـې زه بـه تاتـه دا څنګه وايم

عـذرا: محبـت پټېـدونکے شـے نـه دے، سـعيده زه پوهـه وم، چې آخر بـه دې زړه تـوپ ووهـي او درز بـه وکـړي، حـال بـه ووانـې، خو راته ووايه چې څه به کېږي؟

سعيد: هيڅ په بند پيوند نه پوهېږم.

عـذرا: ترور بی بی تـه د چـا پـه خولې ووايـه چـې زمـا پـلار تـه ووانـې، دا څـه ګرانـه خبـره نـه ده، زمـا دا يقـين دے، چـې زمـا پـلار ستا مور ته انکار نه کوي.

سـعيد: فـې الحـال خـو نـه شـې کېـدے ځکـه چـې زه دوه درې

میاشتې وروسته چرته ترېننګ له ځم

عذرا: د څه شي ترېننګ؟

سعید: که خبر وی چې دولسم پاس کړم. نو بیا د پولیسو د یو غټ افسر د جوړېدو ترېننګ له ځم.

عذرا: یواځې ځې که نور څوك درسره شته؟

سعید: پرنسپل صاحب راته نن وونې. چې کوشش اوکړه چې ښې نمبرې دې راشی. درې ځایونه خالی دی. یعنې درې هلکان به لېږی چې ته په هغه وو درې وو کښې راشې.

عذرا: نو بیا خو ډېر کوشش وکړه سعیده. چې خامخا لوړے سرے جوړ شې. ته د خپلې غریبې مور د ژوند امید نې. هغې سترګې تاته نیولی دی، که ته هم د هغې د قسمت په خته ولړلے شوې، نو ډېر بد به وشی او د نورو خلقو هم سترګې تاته دی

سعید: نور څوك دی چې زما دومره خیال ساتی؟

عذرا: زه یم کنه نور څوك او ورو غوندې نې وخندل

سعید روتې وخوړله، عذرا ترې لوښی راغونډ کړل. سعید ته نې اوبه کوزه ورکړل. راوانېدونکې شوه. بیا نې بېرته وکتل او په سترګو کښې نې وخندل شاید چې څه ونیل غواړی

سعید: ووایه عذرا کنه په زړه زنګ مه پرېږده. څومره ښه ورځ ده، نن چې د دوه وو زړونو راز پکښې شریکه شو

عذرا: څه به ووایم، افسوس چې ما تاته خیل زړه نبودے شوے. یقین مې نه راځی چې ته هم زما سره محبت کوې سعیده!

**سعید**: زما دې قسم وی عذرا چې تولـه شپه مې بس هم ستا تصورات پـه خیال کښې ـوی، هـډو د زړه نـه مې وخې نـه، وایم چې کـه چرې پـه مسافری لاړ شم. نـو څـه بـه کـوم. هلتـه ب راته بغیر ستا نه گزاره ډېره گرانه وی.

**عذرا**: خبـر دے خپـل مقصد لپاره سړے هر څـه کـوی او چې د خیره کامیاب راشې. نو بیا به مې پلار څنګه انکار وکړی؟

**سعید**: بنه نو تا مخکښې څه ونیل غوښتل ووایه کنه؟

**عذرا**: مـا وے چې تـه ترور بـی بـی تـه ووایـه. چې مـا زمـا د پـلار نـه وغـواړی، هسې نـه چې د پښتنـو د غلطـو رسمونو مطابق بل څوك مخکښې شی.

**سعید**: تـه وار مـه خطا کـوه، انشـاء الله تعـالی زمـا او ستا تقدیر لیکلے دے. بنـه ده مالـه چانے زر راوړه، زه بیـا لـوبې لـه ځم ناوختـه بـه شـی. دواړو یـو بـل نـه پـه سترګو سترګو کښې رخصت واخیستلو او موسکی شـول، چې مونـږ ځـومره خـوښ قسـمته یوو.

# څو ورځې پس

عـذرا د هغـې ورځـې نـه وروستـه پـه ور سـوچ کنبـې اختـه شـوه. چې واقعی بد وشو دا خو نوره هم گرانه پرېوتله. ترور بی بی به زما پلار ته زما وینا څنگه وکړی او که وکړی هم نو زما پلار به څنگه دې ته تیار شی، چې یو غریب او بدقسمته خورنیې ته خپله لور ورکړی. خیـر هرڅـه چې کېـږی. دا تقـدیر تـه پرېښـودل پکار دی، خو بیا هم عـذرا تـولې شپې ورځې پـه دې انتظار کښې تېرولې. چې آخر څه موده پس به سعید ترینتک له خی او هغه به کامیاب شی او زه به یوازخې پاتې شم. څه به کوم، دلته خو یواخې گذاره گرانه ده، خدایه چې سعید هېو دلته راغلے نه وے، ما لیدلے نه وے اوس به څه کېږی. دا پـه دې سـوچ کښـې وه، چـې ناڅاپـه سـعید رامخـامخ شـو، عـذرا یـا عذرا!

**عذرا** هاو هاو څه چل دے. داسې وارخطا چغې وهې.
وبې شوے نې؟ **راځه** ووړئ تیاره ده
**سعید** : **مامی** یا مامی ته خبر شوې؟
**گلون** ! هلکه دا څه کوې لکه د لیونو کله مامی ته او کله
عذرا ته نعرې وهې خدائې دې خیر کړی څه چل دربانډې
وشو؟
**مامی** ته پرېږده خوږ د هلك نه دې وار پار خطا کړ. هیڅو
خبرې ته دې پرې نه ښودلو
**سعید** دا خو څه کوې کنه مامی! دا کله ما خبرې ته
پرېږدی.
**گلون** او او زه تا داسې خبرو ته نه پرېږدم
**عذرا** خبره مه بدلوه څه دې وے زر وایه تادی مې ده دا زړه
مې داسې په درزېدو شو چې نا اشنا
**سعید** عذرا مامی او مور مبارك شئ، زه پاس شوم او په
خپل جماعت کښې مې د ټولو ملگرو نه ډېرې نمبرې
واخیستې
ددې خبرې سره عذرا وارخطا شوه او ناڅاپه ئې د خولې نه ووتل
**عذرا** نو پاس شوې نو اوس به ټرېننگ له ځې؟
**سعید** او عذرا! ته خوشحاله شوې، زه به اوس ټرېننگ له ځم
**عذرا** ډېر خوشحاله شوم. ستا دې مبارك شی
**مامی** خوږ مبارك دې شه

ګلون: خور ستا دې مبارك شی سعید ستا زوے دے

عــذرا: تــرور بــی بــی ســتا دې مــبارك شــی. ســعید اوس ټرېننګ له ځی

ګلون: د څه ټرېننګ له بچئے

عذرا: ته نه نې خبر ترور بی بی. استاذ نې ورته وئیلی وو. چې که چرې ډېرې نمبرې دې واخیستلې. نو د پولیسو د غټ افسر جوړېدو دپاره بـه دې ټرېننګ لـه ایبټ آباد تـه ولېږم سعید پاس شو اوس به ټرېننګ له ځی

ددې خبرې سره د ګلون ساه لنډه غونډې شوه او یو سوړ اسویلے نې وکړ" څه سعید به ټرېننګ لـه ځی؟" د خبرې ختمولو سره د ګلون په ښکلې مخ د اوښکو چپې راروانې شوې

عـذرا: اوښکې پـاکې کړه ترور بی بی پـه دې کښې د ژړا څه دی. زوے دې پاس شو خوشحالېږه

ګلون: زمونږ په قسمت کښې خوشحالی کوم ده بچې؟

مـامی: پرېږده خـور هسـې درتـه هرڅـه سیورې سیورې ښکارې. په دې کښې د خفګان څه دی؟

ســعید: ددې پــه قســمت کښــې ژړا ده مـامی کنـه نـن ددې د ژړا څه حق دے

ګلـون: بچئـے تـه هلـك نـې پـه دې خبـرو تـه نـه پوهېـږې. ستا ماما ډېـر ښـه سړے دے خو ستا او خپـل قسـمت مـې ژړوی. ګنې هغه ستا د تعلیم دپاره ډېر خرچ ته تیـار دے، لـیکن بیا هم ستا خپل څه په لاس کښې وے نو ځومره ښه به وې

سعید: ښه ښه پوه شوم، یعني ستا دا مطلب دے چې اوس د تلو دپاره به زما ماما ته په روپو راکولو کښې تکلیف وی. لیکن دا خیال دې د زړه نه لرې کړه چې ما دومره نمبرې اخیستلی دی، چې د کالج د طرف نه به راته وظیفه راکوی.

گلون: وظیفه!؟! دا وظیفه څه ته وائي؟

سعید: وظیفه دې ته وائي چې کوم هلکان په ښو نمبرو پاس شی. هغوی له حکومت سرکاری خرچ ورکوی. د کور په روپو بیا سبق نه وائي.

عذرا: وئ دا خو ډیره ښه شوه، چې د ترور بی بی مرئ ازاده شی.

گلون: بچئے! زه د خپل ورور په دولت خفه کیږم.

عذرا: ستا خو دې هغه په دولت د خفگان حق دے، ولې د خپل زوے خیرخواهی دې نه ده خوښه څه او ستا دلته حق نشته څه، د سعید هم دا د نیکه کور دے او هم د ماما. دلته څه سوالی نه دے ناست.

گلون: خیر اوس مې ساه په راحته شوه.

دوی په دې خبرو کښې مشغول وو چې قباد خان کور ته راغے، ټول ئې جمع ولیدل، په غولی کښې ولاړ دی.

گلون: وروره خبر شوې سعید پاس شو.

قباد: مبارك شه خور، بیا دې مبارك شه سعید څه شو؟

سعید: دا یم ماماجی! ډیري ښې نمبرې مې اخیستی دی.

قباد خان: ډېر ښه وشو بچیه! زما هم ستا نه دا طمع وه، تا خو ماته ویلی وو چې استاذان مې راته وائي چې د پاس کېدو نه وروستو به دې چرته ولېږو.

سعید: او جی او جی هغه وشوه، ما ډېري ښې نمبې واخیستلې او په خپل جماعت کښې اول نمبر راغلم. پرنسپل صاحب وائي چې د ټرېننګ دپاره دې هلکان ایبټ آباد ته لېږو، ته دې د ماما سره مصلحت وکه، که د هغه خوښه وی نو چې لاړ شي.

قباد: بچیه! زه په دې څه پوهېږم. دا خو ستا د خیال مطابق کار دے، چې ته مخکښې تعلیم کول غواړې او یا ټرېننګ له ځې، زه خو ستا پلار یم په ما زړه مه سېزه، ستا د مور دلته حصه ده، د خپلې مور په حصه کښې سبق ونیلے شې هر څومره خرچ چې پرې راځی هېڅ پرواه مه کوه.

ګلون: وروره! ستا سر زما دے، زما ورندار او وربره زما ډېر خدمت کوی، عذرا خو سعید ته داسې ولاړه ده لکه خدمتګاره یوه یوه نیکی نې هېرولے نه شم، خدائے دې ژوندئ لری.

قباد: ولې به نه کوی خور دا هم ستا لور ده، ځوك بل څوك خو نه ده، ښه ده نو سعیده څه دې خیال دے؟

سعید: ماماجی! خیال مې دا دے چې دې ټرېننګ له لاړ شم، روپۍ به راته د ډېرو نمبرو د اخیستلو په وجه حکومت

راکوی، په تاسو هم څه خرچ نه راځي، بنه ب دا وي چې اجازت راکړئ او لاړ شم.

**قباد:** ګوره بچیه! زما خو هر وخت اجازت دے، چې په څه کښې ستا فایده وي، هغه زما خوښه ده او نه د خیره زلمے نې. په خپله فایده بنه پوهیږې، ستا به د پلار په کور کښې د اوسیدو قسمت نه و کنه دا هم ستا خپل کور دے. خو خفه په دې یم چې هلته دې ورور ټول دولت تباه او برباد کړ، کله په ډمو پسې ګرځي، او کله جواریانې کوي افسوس چې پلار نې جوړ وے دا به هم بنه وه، هغه غریب هم لاړ ټول عمر نې قابو قابو په هسپتال کښې ووهستلو

**ګلون:** وروره ولي خان په هسپتال کښې دے څه؟

**قباد:** او خور اشرف خان ستاسو د راوېستو نه څو ورځې پس د لاهور یو هسپتال ته تلے دے، او هم هلته داخل دے.

**ګلون:** ولې څه چل پرې شوے دے خدائې دې ورته خیر کړي.

**قباد:** د زړه مریض دے، هر وخت ورته د مرګ خطره ده. خو زوے پرې هم بنه پیښ دے. یو طرف ته پټې خرڅوي پلار له هسپتال ته روپۍ لیږي او بل طرف ته په ډمو او جوارۍ پسې ګرځي، خو خپل جوړ نې دے زمونږ پکښې څه کار دے

**سعید:** ولې پکښې زمونږ کار نشته ماماجي! دا زمونږ حق دے، چې د هغې تپوس وکړو خکه چې زما خو میراث دے

**ګلون.** ستا د څه شي میراث دے؟ ستا په قسمت کښې خو

دا کور دے، دا زما ورور دے هم ماما دےاو هم پلار. د هغه کور خیال د زړه نه وباسه.

سعید: مور دا خیال به زه چرته هم د زړه نه ونه باسم، زه څه بې غېرته خو نه یم. خو د شریفې مور زوے یم او د یو شریف ماما خورنے یم. ګنې خپله مطالبه کول یا پوره کول زما غونډې هلك دپاره څه ګران کار نه دے. ته به وینې چې زه د وحید نه خپل حق څنګه غواړوم؟

قباد: پرهېږدئ اوس دا خبرې، بنه ده نو سعیده کله به خې او څومره روپۍ به دې لږې.

سعید: اوس پته نه لږي ماما جي. سبا به زه کالج ته ورشم، هغوی به راته په یو پولیس افسر خط راکړي، بیا به راته د هغوی ټول تفصیلات وښائي.

سبا سحر وختي سعید پاڅېدو. عذرا ورله چائے راوړې، کپړې ئې ورته تیارې کړې وې، ده بنه خان جوړ کړو او راروان شو، بهرته ئې وکتل، عذرا په درشل لاسونه اچولي سعید ته ګورې.

عذرا: بهرته خو وګوره کنه داسې نبغ لاړې.

سعید: زه د ټول عمر دپاره خو نه ځم. ماسپښین به کور ته راځم. بیا به هله ځم

عذرا: دا بنه ده خو ما وے چې که څه لاړې بیا نه راځې.

سعید کالج ته راغے، ټولو پروفیسرانو سره د پرنسپل صاحب ورته بنه په مینه هرکلے وکړ، سرټیفیکیټ ئې ورته بنه

په مینه ورکړ. پرنسپل صاحب ټولو هلکانو ته تقریر وکړ، چې تاسو ټولو له د سعید په شان اخلاق او خونی ساتل پکار دی. که هغه محنت نه وے کړے، نو ولې به په ښو نمبرو پاس کېده او دغه دے اوس ورته حکومت محتاج دے او تـرهننګ تـه د لېږلو منت ورته کوی.

سعید په آدب د خپلو استاذانو نه رارخصت شو او د پرنسپل صاحب لیکلے خط ئې پولیس افسر ته پېش کړ.

افسر: ښه، سعید ته ئې؟

سعید: او جی زه یم

افسر: ښه زلمیه! ستا کار وشو. مبارك شه. ستا نمبرې ډېرې ښې دی. ددې وجې نه حکومت ستا سره رعایت کوی او دوه سوه روپۍ وظیفه نې درته مقرر کړه. ته به نهه میاشتې ترهننګ په ایبټ اباد کښې کوې، سبا نه او بله ورځ به خان هلته حاضروې، چې د هغې خائے نه نهه میاشتې پس رااوخې، نو که خیر وی دلته به په یو مقامی تهانه کښې سټېشن افسر مقرر شې. یعنې تهانېدار به شې او د ملك خدمت به کوې. زما ستا نه دا طمعه ده، چې ته ځومره د ملك او قوم خدمت کولے شې. دا بل څوك نه شی کولے.

سعید: الله پاك دې کړی چې ستاسو دا توقعات پوره شی. کنه ما غریب ته وګوره او دې اهلیت او قابلیت ته. زه د حکومت مشکور یم. چې هغوی مونږ له دا وظیفه د ډاډګیرنې په جوړ راکوی زما نه وروسته به نور هلکان هم دا کوشش

شروع کړی، چې په نبو نمبرو پاس شي.

سعيد کور ته راغے، ماما ته ئې ټول واقعات اووې هغه ډېر خوشحاله شو، بيا کور ته راغے، عذرا، مور او مامی ئې خبر کړلو چې زه به سبا نه بله ورځ ابېټ آباد ته ځم، عذرا ماله کپړې ميږې برابرې کړه.

عذرا زر په کمره ورمنډه کړه، سوټ کيس کوم ځائے دے؟ ستا هغه تور بوټان څه شوو هغه چپل خو نن دلته هلو شته نه، هاېے دا خو يو پرتوغانې دے. نور څه شو؟

سعيد: ستا هسې نظر نه لږې هېڅ نه وينې، هر څه پراته دی، سترګې وغړوه بوټان هغه دی. چپل هغه دی پراته دی او دا واخله هغه نور پرتوګانبونه.

عذرا: واقعی زما نظر نه لږی او څنګه به ولږی، خکه چې نه دومره په اوږد سفر روان ئې بيا به راځې کنه، زه به ستا انتظار کوم.

سعيد: انتظار مه کوه عذرا. زما د هغې ورځې انتظار وکه، چې که خبر وی زه کامياب راشم، نو انشاء الله تعالی چې ماماجی به خامخا زما دا آرزو ومنی او دا واوره چې سره زما د راتلو او ما نه ماماجی ته دا وينا کړې وی.

عذرا: خدائے دې وکړی چې ترور بی بی ورته ووايی او هغه ئې ومنی او د خدائے په دربار کښې دا دعا کوم، چې ته کامياب او کامران راشې، زه به په طمع يم، ته به خامخا بلې ورځې ته حصاربدې شې.

سعید: هیڅ فایده نشته، نه شم حصاربدے څه یوه ورځ او څه بله ورځ. عذرا د لیدو کتو مرېدل په ورخو نه کېږي دا د زړونو د یووالي سوال دے. که خدائے ته منظوره وي نو زما دا وعده ده، چې خپل ټول ژوند به ستا په خدمت کښې تېر کړم. خپل سر به ورکړم. خو تا به د ماماجي نه وغواړم

عذرا: زه به ستا لارې ته ګورم، ستا په انتظار به یم

دوه ورځې پس سحر سعید خان بېنه تیار کړ، سوټ کېس ورله عذرا د شپې د سامان نه ډك كړې و او د عذرا نه ئې رخصت واخیستلو او د ماما خواله راغے، هغه هم ورپسې راپاڅېده. سر ډېره حده ورسره په جلب کښې راغے او د رخصت په وخت کښې ئې ووې

قباد خان: بچیه! دا څلور سوه روپۍ د خان سره واخله او که چرې دې نور ضرورت شو، نو خط راولېږه

سعید: ماما جی خرچه حکومت راکوی، دې ته ضرورت نه شته. دا به ستاسو پکار شي!

قباد: ما څه قرض کړې خو نه دی بچیه! خو تیارې راسره پرتې وې او در مې کړې. زه خو وایم چې ما ستاسو دپاره ټوله دنیا قربان کړې

سعید: ماماجي ته زما پلار ئې. تا ماته د پلار مینه ونبودله، زه په دنیا کښې یو طرف ته که بدقسمته زوے یم. نو بل طرف ته خوش قسمه خورئي یم او زه ستاسو په خوریې توب فخر کوم. دا زما خوش قسمتي ده، چې ستا غوندې ماما

خدائے راکړے دے.

سعید بنـه پـه دوانفاء رخصت شو ابېت اباد تـه ورسېده او هم هلتـه نـې ټرېننگ شروع کـړ، لـيکن دلتـه د عـذرا د زړه نـه سعيد ونـه وت او بيـا بيـا بـه نـې وے چې يـره جمعـه تېره شـوه. دوه تېرې شوې او همېشه به په سوچ کې وه، چې کله به راشي.

ګلـون: عـذرا يـا عـذرا! ګـوره بچنـے دا خپـنې بيکـاري بنـه څيـز نه دے ډېرې ورخې وشوې، څه په سوچ غوندې ښکارې.

عـذرا : نـه ترور بـی بـی ډېره بنـه يم. هېڅ سوچ مې نشته، ما وے چې نـن د جمعـې ورخ ده، سـر درلـه غـوړ کـړم او وينځم درلـه. جامې مې درله تيارې کړې دی، خان تيار کړه.

ګلـون: د جمعـې ورخ، اينځلـے سـر او نـو جـامې هرڅـه زر زر خيـال تـه لاړل راغـل لاو هغـه جمعـه نـې پـه نظر شـوه، پـه کومـه چې ددې خلـوېښتی ختمېـده او خـوابنې سـره د نکهـت ورسـره جـنګ وکـړ، اودس نـې پـاتې شـو او وړوکـې تسـنيم ددې د غېـږې نـه ولـې تـه ارتـاوه شـوه او مـړه شـوه. بيـا دا د کـوره ووېسـتلے شـوه او وړه مـړه لـور تـرې د خاونـد کـره پـاتې شـوه دا هرڅـه تېـز تېـز ددې خيـال تـه راغلـل او بـې عـرض ورتـه ودرېده او داسې پـه هټکـو سـر شـوه، چې تـا بـه وے چې د ګلـون دنيـا پـه ختمېـدو شـوه. عـذرا رامنـډه کـړه، زر ور ترغـاړې وتـه مـور دا څـه کـوې؟ څـومره ښکلـې ورخ ده او سـتا ژړا؟. سـعيد رېښتيـا وائـې چـې زمـا د مـور پـه قسـمت کښې بغير د ژړا نه بل څه نشته.

ګلـون اودس وکـړ، عـذرا ورلـه هرڅـه تيـار کـړی وو، عـذرا هـم خان لکـه د ښـاپېرۍ سـمبال کـړ، لمـونځ وشـو، قبـاد خـان کـور تـه

راغے.

**قباد خان**: خور یه خور! عذرا ترور دې څه شوه؟

**عذرا**: هغه ده راغله دا جی ولې څه وے ورته؟

**ګلون**: خیر دے وروره بیا څه چل دے؟.

قباد: دا د سعید خط راغلے دے، وائي چې دوه درې میاشتې وروسته به درشم. یو امتحان نې شوے دے، په خپلو ملګرو کښې اول نمبر راغے دے، د ښه کار په وجه ورته حکومت انعام هم مقرر کړے دے.

**ګلون**: ستا دې مبارك شي وروره دا هرڅه ستا احسان دے.

قباد: دا د هغه د نیکه کور دے خور او ستا د پلار دے، زما څه احسان دے. قباد خان د کور نه ووتلو، باهر په خپل کار وبار کښې مشغول شو، حجره او کور په خپل معمول روان دی چلېږی.

وخت او ورځې تېرېږی، کله ښې او کله بدې، لیکن د عذرا د خیال نه سعید ونه وتلو او همدارنګې د سعید د خیال نه عذرا ونه وتله.

سعید د خپلو ملګرو سره په کمره کښې ناست دے، یو وونې:

**ملګرے**: سعیده ښه خوش قسمته سړے نې، چې امتحان ورکوې، نو په ښو نمبرو پاس کېږې، مونږ خو هسې غرق شو.

سعید: دا د محنت ځیز دے وروره! قسمت کته کړے خر دے چې کوم طرف ته نې بیائې، په هغه ځی، تاسو زما نه ډېر

قابلان ني، خو محنت کم کوئ، زه خو وايم چي تاسو ډېر کولے.

**دويم ملګرے**: هلکه سعيده نن په سوچ کښې ښکارېږې، د دوه دري هفتو راسې غلے ني.

**سعيد**: څه به غلے شم طبيعت دے کله ښه او کله بد. ستاسو سره خو مې ډېر ښه وخت تېرېږي، ستاسو دا سوسائيتي به تر عمره هېره نه کړم، تاسو ماله ډېر خدمتونه وکړل.

**ملګرے**: يار مونږ تاله څه وکړل. دا هرڅه خو ستا د طرفه دي؟

دوئ په دې خبرو کښې لګيا دی. سعيد ووې هلکه وخت مه ضائع کوئ امتحان نزدې دے. ځئ چي چرته کار وکړو

دوی د امتحان په خبرو مصرو شول قباد خان ښه په جوړ جاړ خپل کاروبار ساتی، خو کله ناکله ني خيال ته راشی چي ګلون ته وايم چي هر کله چي سعيد راغے، نو عذرا به ورله ورکوم. دا ما د سعيد دپاره خوښه کړې ده، خو کله چي سوچ کښې شی هسې نه چي ګلون عذرا خوښه نه کړی، په دې تصور کښې قباد کور ته راغے او خور ته ني غږ کړ:

**قباد**: خور يه خور څه شوې، نن خو راځه چي لږ کېنو. د عذرا مور څه شوه.

ګلون او د عذرا مور راغلې کېناستل عذرا هم غلې غوندې د ستني پناه ولاړه وه، غوږ ني اينودے دے. چي دوی څه واني قباد خان خبره شروع کړه:

**قباد**: د عذرا مور خبره دا ده، چي لور خو د هر سړی د

عـزت پـه خائـے کښـې خوښـه وی، دا د چـا خوښـه نـه وی، چـې د سـرې خـور لـور دې خوشـحاله نـه وی، خـو د قسـمت کـار دے، زه چـې د خـپلې خـور حـال تـه وګـورم، نـو وایـم چـې عـذرا مـې هډو ورکولے نـه، لـیکن بیـا مـې خیـال شـی چـې پښغلـه لـور څـوك پـه کـور کښـې سـاتلے نـه شـی، ښـه بـه دا وی چـې کـه چـرې زمـا د خـور خوښـه وی. نـو عـذرا سـعید تـه ورکـوم. هغـه هسـې هـم نـن سـبا راروان دے. خط نـې هغـه بلـه ورخ راغـے دے، خـو مـا تاسـو تـه څـه نه دی ونیلی، خکه چې هغه پخپله راروان دے.

پـه خـط کښــې نــې لیکلــی دی امتحــان مــې پـاس کـړو، تهانېدار نـې مقـرر کـړم، خـو د یـو څـو ورخـو دپـاره کـور تـه درځـم. انشـاء الله تعـالی چـې نـن یـا سـبا بـه راشـی. خـور څنګـه سـتا خوښـه ده کنه!

**ګلـون:** وروره دا دې پـه مـا غـټ لحـاظ دے، ډېـر ښـه دې راسـره کـړې دی، خـو دا دې راسـره ډېـر ښـه وکـړه، سـعید سـتا هسې هم زوے دے او اوس دې ښه زوے شو.

د عـذرا مـور هـم ډېـره خوشـحالی ښکـاره کـړه. دوی یـو بـل لـه مبارکـی ورکـړې او هنـر زوړ شـو، عـذرا لاړه پـه کمـره کښـې پټـه شـوه او سـعید ناخاپـه سـوټ کـیس پـه لاس رامخـامخ شـو، دوی زر پاڅېـدل، هغـه راغـے مامـا تـه نـې سـلام وکـړ، مـامی ښکـل کـړ، او بیـا مـور تـه ور تـر غـاړې وتـو اخوا دېخوا نـې وکتـل او بیـا نـې زر تپوس وکړ.

**سعید:** عذرا څه شوه مامی ما خو هډو ونه لیده.

ددې خبرې سره ټول د خندا شنه شول، سعید حېران غونـدې

شو چې څه وشو.

مامی: شرمېږې نه چې د عذرا تپوس کوې.

سعید: ولې مامی څه چل دی، ماماجی خو دومره زر د کور نه ووتلو چې...

مامی: ماما دې اوس راغلے و او عذرا نې تالـه درکړه. بـده خبره ده چې ستا پـه مخکښې وایـم خـو مونږ اوس یـو بـل لـه مبارکی ورکولې چې ته راغلې.

د سعید زړه د خوشحالئ نـه پـه درزېدو شـو، موسکے شـو او غلی نې مور ته وکتل او شرمېدونکې خندا نې وکړه.

# اکـــرام

سـعید تهانیـدار شـو، د خـپلې مقـامی تهـانې د یـو افسـر پـه سـفارش چـې د قبـاد خـان دوست و، خـپلې تـانړې تـه رابـدل شـوے و. د پولیسـو د مشـر افسـر یعنې ایـس ایـچ او صـاحب پـه دې ډېر خوشـحاله و، چـې هغـه تـه یـو ښـه شـریف او کـارداره تهانیـدار مـلاو شـو، ځکـه چـې نـن سـبا پـه دې علاقـه کښـې غلاګـانې، ډهاکې او نـورې بدمعشـیانې ډېـرې شـوې وې او پـه تېـره تېـره خـو بـه هـره ورځ د وحیـد د نـاکړدو خبرونـه رارسـېدل. بدمعاشـۍ زور نیولے و یوه ورځ دوی په تهانه کښې ناست و.

سـعید: ایـس ایـچ او صـاحب تراوسـه پـه دې څیـز هډو پوهـه نـه یـم، صـرف دا بـه ووایـم، چـې پښتانـه خلـق دورانـدېش خلـق نـه دی، ځکـه خـو خلق متـل کـوی، چـې پښتانـه تـش کهنـډر سـاتی او

په دې وجه نې هر سړې دهوکه کولے شي. د پښتنو دا يو عادت مې ډېر بدې شي چې دوى خوشامند ګيرى خوښه وى. په دې هډو پوه نه دى چې ښه څه ته وائي. شرافت څه څيز دے، خو بس د دوى په نظر بس شرافت بې غېرتي او بدمعاشي، زور زياتے او غلط کارونه، نر توب دے. زه حېران يم چې د دوى د ذهنونو به بد خيالات کله لرې کېږى.

ايس ايچ او: خير هرڅه چې دى يا وشو، دا ستا فرض دى، چې ته وحيد ته ورشې او نصيحت ورته وکړې هغه ستا ورور دے، زما دا يقين دے چې هغه تا په دې جامو کښې ووينى نو يقينى به متاثره شي چې زما ورور څومره لوني سړے جوړ شو او زه هېڅ نه کوم، بل دا چې ستا هلته په خپل جانداد کښې حصه ده، هغه بچ کول هم ستا فرض دى.

سعيد: زما هم د دوه درې ورځو راسې خيال و، چې ورله ورشم. ليکن ما وے دا خيال به وکړى چې د دولت اوړے دے په ما پسې راغلے دے، يا د خپلې نوکرئ رعب په ما خرڅوى، خير بيا هم زما حق دے ورله به ورشم.

دوى چهټى وکړه، سعيد کور ته راغے مور او نيندار نې پسې راغلې. کپړې نې بدلې کړې، مور ورله ډوډئ راوړه، سعيد ډوډى ته کښناسته او يو سوړ اسويلے نې وکړ، صرف په دې نه چې خفه دے، خو په دې وجه چې ماماجى راته عذرا ولې دومره وختى کوژدن کوله چې هغه راله اوس د شرمه کار نشى کولے. خير ناست دے ډوډى خورى، ناڅاپه ورته مور ووې: خبر نې سعيده کنه؟

**سعید**: نه آبی څه نه، ماته خو هېڅ پته نشته؟

مور: ښه ده بلـه خبره مې رایاده شوه، ماما دې دے، ګوره دے دومره ورځې پرلـه پسې کور تـه رانغے څه وجـه ده هغـه ډېر خفه دے.

**سعید**: (په خندا غوندې) مور زما ماما پـه دې نـه خفـه کېږي، خو تـه بـه خفـه شوې نې او دا ب دې خیال وی چې زوے مې چرته لوفر شو که.

مور: او او بچیـه دا خیـال مې و، تـه چرتـه تلے وې دا دوه درې ورځې.

سعید: ګوره مور خلق وانی، چې په آخور دې لوے شې، نو غـابن نـې مـه ګـوره، زه ستا زوے یـم، بداخلاقـه نـه شـم کېـدے، خـو مـور دا زمـا ډیـوټی ده، زمـا فـرض دی، چـې زه بـه خپلـه نـوکری پـه ایمانـدارۍ سـره کـوم، زمـا داسـې نـوکری ده، چـې درې ورځې څه کله ناکله به په میاشتو هم کور ته نه شم راتلے، نو ته به راپسې خفه کېږې.؟

مور: نـه بچیـه! خدائے دې داسې ونـه کړی چې زه بـه تـا ستا د فرضـو پـوره کولـو نـه منـع کـړم. زمـا دا ایمـان دے چـې کـه چـرې زه هم جرم وکړم نو ستا لاس به ونه نیسم، چې ماله سزا مه راکوه.

**سعید**: مـور زمـا هـم پـه خدائے قسـم دے او دا مـې غیـرت دے چې زه بـه د قـانون مـاتونکی تـه سزا ورکـوم، خـواه کـه هغـه زمـا خوېندې مور او خوېندې عذرا ولې نه وی.

مـور: وئ داسـې بـې شـرمه شـوې، هـېڅ حیـا درېکښـې نـه

شته، د مور په مخکښې د خپلې چنغلې نوم اخلي، جوړ ډېره دې یادېږي، هغه درنه اوس پټېږي، ولې چې غوښتلے جینکۍ شرمېږي. ماماجی ته دې وایم، چې د واده بندوبست زر وکړي او هغه خبره مې هېره شوې وه، ښه ده چې رایاده شوه. ته دا درې ورځې نه وې د اکرام تار راغلے و، ماما دې وے چې نن سبا به اکرام د ولایت نه واپس راشي.

**سعید**: ښه مور اکرام لالا به راشي، دا خو به ډېر ښه وشي، د ماماجی دغه یو زوے دے او ډېر قابل سړے دے، مور ما خو لېدلے نه دے، خو د خلقو نه نې ډېر صفتونه اورم. وائي چې داسې شریف او نېک سړے دے چې نااشنا، ختدائے پاك دې روغ راولي، ځکه چې هغه خو هلته ډاکټرې پاس کړه او ډېره لویه عهده ب ورته په لاس راشي. هسې هم زمونږ په علاقه کښې د یو ښه ډاکټر ضرورت دے، د دې خبرې سره د ګلون مرئ وچه شوه او غریبو ونیوله، بلکې اوښکې نې وبهېدلې.

**سعید**: مور د ژړا پکښې څه سوال دے، هر وخت ژړا ده ژړا ده، ستا هډو بل کسب نشته ووایه څه چل دے؟

**مور**: ته لا نه وے پیدا بچیه! ستا یوه خور وه تسنیم نې نوم و. ستا ماماجی د هغې کېدو له راغلے و، ډېر سامان نې ورله راوړے و، هغه د اکرام نه څه لږه ورځې کشره وه، چې ماماجی دې واپس کور ته راتلو، نو زما مور او ماته نې ووې تسنیم د اکرام شوه خور! دا ما اکرام له وغوښتله لیکن...

**سعید**: پرېږده مو دا خبرې، زاړه غمونه مه یادوه. د هغې

به خدائے وخت پوره کړے و، اوس دې عمر هسې هم ډېر شوے دے او څه ته خان له نور غمونه هم جوړ کړي. اکرام لالا هسې هم زما ورور دے، څه وشو که اوښے مې نه شی، ستا زوے دے که زوم دې نه شو خو خبره ده، هغه دې خدائے دخیره راولی. د ماماجی او مامی به پرې زړونه ټکور شی او عذرا به څومره خوشحاله شی مور!

مور: بیا دې د عذرا نوم واخیستلو، ښه ده نن دې ماما ته وایم.

سعید: مور ته څه لوښی یوسه، نوره ډوډۍ نه خورم او زه چرته ځم.

مور: د ماما نه دې اجازت واخله هله به ځې.

**سعید**: خامخا به ترې تپوس کوم.

مور: چرته ځې ما هم خبر کړه کنه؟

سعید: ستا نه څه پرده مور، نن خپل کلی ته ځم اوربدلی مې دی چې وحید ټول دولت خراب کړ، ډمو له ئې ورکه او اوس په جوارو او غلاګانو اخته شوے دے، څه لږ غوندې نصیحت به ورته وکړم او د خپلې حصې تپوس به ترې وکړم.

مور: هله بچیه چې لاړ نه شې، ډېر ناکاره هلك دے، هسې نه چې څه درته ووائي.

سعید: خفه کېږه مور چې زه څه نه وایم، نو هغه به ولې وائي؟ صرف تپوس کول زما حق دے، دا به زه ضرور کوم.

مور: ښه ده په مخه دې ښه، خو د ماما په اجازت دې لاړ شه.

سعید رابهر شو د ماما څنګ له راغے ماما ورته د ورایه

اواز وکړ:

قباد: سعیده بچیه! دري څلور ورځې چرته وې؟

سعید: ماماجی په نوکرئ چرته لړې خانے ته تلے وم. څه مې کړے وے کور ته نه شوم راتلے.

قباد: چرته روان نې څه اراده دې ده؟

سعید: ما وے که تاسو اجازت راکوئ، نو چې خپل کلی ته لاړ شم، د وحید سره به وینم چې زمونږ د حق څه چل کوی؟

قباد: بنــه ده کنـه بچیـه! ورشـه، پـه مخـه دې بنـه خـو ګـوره تېزی پـه خبـرو کښـې مـه کـوه، تـه مشر نې ستا د ناکام حق دے. هغـه لېونـے دے پـه دولـت شـر کـول د سپـك سړی کـار دے. دا ټـول ستا دولـت نـه دے څـه او دا واوره زر راځـه، د اکـرام وررور دې خط راغلے دے، کېدے شی چې نن سبا راشي.

سـعید: کـه ستاسـو خوښـه وی، نـو د لالاجـی د راتلـو نـه وروستو به لاړ شم.

قباد: نـه نـه، چـې اراده دې کـړې ده، نـو اوس لاړ شـه. خـو زر راځه، ډېر مه حصارېږه، مونږ به په انتظار یو.

اشـرف خـان د زړه بیمـار و. ورسـره نـې قـبض هـم شـروع شـو. مالـدار سـړے و، د روپـو ورتـه څـه کمـے و، ډاکټرانـو ورلـه مشـوره ورکړې وه، چې پـوره ورځـې پـه هسـپتال کښـې حصـار شـی، نـو بنـه بـه وی. کلـه تلـے کلـه راغلـے. خـو پـه دې مېـنځ کښـې دوه دوه نیم کالـه پـه هسـپتال کښـې تېـر شـو او لا هغسـې پـه هسـپتال کښـې دے، پیسـې بـه ورلـه وحیـد لېـږلې زر بـه نـې پټـے خـرڅ کـړ،

څه روپۍ به نې پلار له ولېږلي او نوري به د ګلنار د سر شکرانه شوي. ګلے او ملګرې نې هم ښه تازه او خوشحاله دی. د خان خوا نې نيولې ده، اشرف خان هم ډېر په طبع کښې دے، چې زوے مې ډېر ښه سړے دے، ډېر خدمتونه مې کوي. ډېرې پيسې راته وخت په وخت رالېږي.

هلته نه سعيد صرف په دې خيال راغے، چې ورشم او خپل ورور پوهه کړم. کېدے شي چې زما خبره واوري او خدائے پاک نې نيکې ته مخه کړي، ليکن وحيد د خپل لوفرانه خيالاتو له برکته خپل جائيداد تقول ختم کړ، خپل خپولان تري نه پردي شول اوس ورسره د خپلو جامو نه علاوه نور څه پاتې نه دی. که څه پاتې دی، نو هغه يو ګلے او يو خبرے دے. په خپلو کړو نه دے ستومانه ، بلکې وحيد په دې سوچ کښې دے چې اوس به څه کوم. پلار به مې راشي هغه به څه وائي، ګلے او خبرے رانه جدا کېدونکي دي و ګلنار به خفه شي په دې سوچ کښې ډوب په خپله ماتړۍ کښې ولاړ دے، سعيد راغے:

**سعيد** : السلام عليکم! خوږه وروره څه چل دے؟ څه خفه غوندې نې، د داداجي څه خبر راغلے دے کنه؟

**وحيد** : وهو سعيده اوس هم درنه خلاص نه شوم. بيا ولې راغلې دلته؟

**سعيد** : زما دا حق دے، چې زه خپل کشرو ورور ته نصيحت وکړم.

**وحيد** : هو! ته او نصيحت او خپل کشر ورور ته. زما کله

ورور شوي.

سعيد : خیر دے کـه زه ستا ورور نـه یـم، خـو خـان ستا همدرد گنړم.

وحید : بالکل غلطـه ده. زه کلـه دا منم چـې تـه بـه زما همدرد يې؟

سعید : گوره خوږه د خاندان عزت دې د خپله لاسه د گلی او خبری په خوږو او پستو په خاوره کښې ولړلو. اوس هم تاته ډیره ښه موقعه ده که چرې په گریوان دې سر دننه کړې او خان وپیژنې.

وحید : غلے شه کنه بدمعاشه، تـه زما پـه مخکښـې زما د یارانو غیبت کـوې، پـه دنیا کښـې بغیـر د هغـوی نـه زما څـوك دی، خه ورك شه!

سعید : دا دې ناپوهی ده کنـه، هغـه ستا د څـه چـارې دوستان دی؟

وحید : چې هغه مې خپل نه دی و نو ته مې د کومه داسې خپل پیدا شوې، ستا صرف دا مطلب دے، چې د پلار په جائیداد کښې مې حصه وشی، لیکن ته خو زما پلار عاق کړے نې، ستا پـه جائداد کښـې قانونـاً او شـرعاً دواړو کښـې حصـه نشته، خه د ماما کره دې چې هغه درلـه نـوکری وگـوری او یـو غټ سړے شې، هغه خبره مې یاده ده، چې ستا مور تله او دا نې ووې، چې ورور مې ښـه سـړے دے، زوے بـه رالـه ښـه سـړے کړی، گورم کنه چې ته خپل ماما څنگ سړے جوړ کړې.

سعید : هرڅـه بـه وے، خـو زما د ماما پـه حق کښـې بـه سپکه

خوله نه خوخوي ګورے

وحيد ډېره ښه ده، کنه چې ته څه کولے شې نو نيولے چا نې؟

سعيد که ستا دا خيال وی چې ماله ب دهوکه راکړې. چې زه د جانداد دپاره راغلے يم، نو دا ماته پته ده، چې جانداد تا ختم کړے دے اوس په خپله موټے خاورې خولې ته اچې ما له به څه راکړې. ليکن صرف ستا د همدردئ دپاره راغلے يم. اوس هم ته دنيا ته ښودلے شې چې د خاندان عزت ما نه، بلکې زما ناکاره دوستانو خراب کړ.

وحيد: او او معلومه شوه. ته واقعی ډېر نيک سړے نې، خه ورخه په مخه دې ښه.

سعيد زه درنه لاړم، ليکن بيا به لکه د مچ منګولې مروړې او څه به کولے نه شې.

وحيد: ښه ده کنه ګورو به، ستا په شان ژوند زما سپی هم نه تېروی.

سعيد خفه او نااميده راروان شو، د خپل کور مخه نې ونيوله، وحيد حجرې ته راغے، ګلے او خبے ورته ملاو شول. حيد ورته حال بيان کړ چې سعيد راغلے و او داسې خبرې نې وکړې، ما ورته دا ووې او هغه دا ووې رخصت مې کړ.

خبرے: خان هسې درنه لاړو، ما خو وے چې يو څو ډانګونه دې وهلے وے نو.

ګلے: ولې خان نو بغير د څه ويلو نه دې پرېښودلو

وحيد: ما وے مېلمه دے، اوس به ورته څه وايم، پرېږده

چې لاړ شي، خو که چرې بیا راغے، نو تماشه به نې وکړې.

ګلې: یره خان دا وار به پرې ما خامخا خبروې.

خبرے: زمونږ دا قسمت نشته دے، زه وایم چې دے راغلے او زه وے.

سعید څه شیبه پس خفه درمانده په سوچ کښې خپل کلی ته راورسیدلو. مازیګر وخت و، لمر پناه کیدونکے و، دے په دې تصور کښې و، چې مور او ماما ته به څه وایم؟ دده څه د ږزو آوازونه په غوږ شول، دے وورېده او غوږ نې کینوده، هلکه سعیده ټوپکې ډزیږې، خدائے دې خیر کړی څه چل دے. د چا جنګ وشو، په کلی کښې که ده زر د تانړې مخه ونیوه، هلته لاړو تانړه خوشې وه، ده زر زر د ایس ایچ او صاحب وردی واچوله او کلی ته راپه منډه شو، چې رانزدې شو، نو د ږزو آوازونه د قباد خان د حجرې نه راروان دی. دے نور هم وارخطا شو او دا خبره نې هډو په خیال کښې نشته، چې اکرام لالا به راغلے وی. اکرام خو ډیره موده په ولایت کښې ویستلې وه، ډیر کلونه پس راغلے دے، د کلی محلت ټول خلق او همزولی د هغه د خو اخلاقو نه ډیر خوشحاله او رضا دی، ددې وجې نه هر سړی د خوشحالئ نه نن د ټوپك او تمانچې خولې سړدلې وی، سعید هم په منډه منډه راغے، ګنړه ګوره ده، ده په تادئ کښې تپوس وکړ: هلکو څه چل دے؟ ما خو هم خبر کړئ، کنه ظالمانو، خلقو په برق برق وخندل.

قباد خان: راځه بچیه مه وارخطا کیږه، اکرام راغلے دے.

سعید: (په تادئ کښې) اکرام لاله راغلے دے.

اکرام: دا جی دا څوك دے دا پولیس افسر؟

**قباد خان:** بچیه دا هغه ستا د ترور زوے دے کنه.

**اکرام:** وئ الله شکر دے دا سعید دے، دده مور ډیره ښه ښځه ده، دے خو ما هیڅ داجی لیدے نه دے.

**قباد:** او بچیه تاسو یو بل هیڅ لیدلی نه دی.

په دې خبرو کښې تیارخوره راووتله چې بیبیانې وانې چې اکرام خان دې کور ته راشی. اکرام او سعید دواړه کور ته راغلل، عذرا، ګلون او مور ئې په انتظار په دروازو کښې ولاړې وې، دوی راغلل ګلون او مور ئې اکرام په سترګو سترګو ښکل کړ، عذرا هم د مینې ډك سلام وکړ. سعید ورته اوچت وکتل، خو عذرا وشرمیده او په منډه شوه اکرام ووې:

**اکرام:** ترور بی بی عذرا ولې وتښتېده، زما نه شرمیږی که؟

**ګلون:** نه بچیه! دا د سعید نه شرمیږی، پلار دې دا ده له ورکړې ده.

ددې خبرې اوریدو سره سعید سترګې ښکته کړې او اکرام په خندا شو، ډیر شکر دے، زما هلته دا خیال و، خکه چې دا جی مې راته ټول واقعات لیکلی وو، ما وے چې کله لاړ شم، نو اول به عذرا سعید ته په نکاح کړم.

**ګلون:** ښه ده، نو کوژدن مې ورله ورور وکړه او واده به ورله ته وکړې.

**اکرام:** د واده څه سوال دے، یو کور دے او یو نغرے دے، ترور بی بی.

**ګلون:** او کنه بچیه زما هم دا مطلب دے، چې زر وشی

جینی ته هم تکلیف دے. هر وخت په کمره کښې دننه ناسته وی او هلك ته هم.

اکرام: بس دوه دري ورځې پس به دا تکلیف دفعه شی. هرڅه به ټهیك ټاك کړم، دا اوس زما کار دے. داجی بودا دے. زوړے خلق ددې ورځې دپاره غواړی، چې رالونی شی او دپلار پکار شی.

بنه ده مور او ترور تاسو اوس خې. مونږ بساهر ته خو، مېلمانه راځی چې هغوی مشغول کړو.

ګلون: په مخه مو ښه، خدائے یو ژوندی په حیا او عزت لره.

مور: بې پردې مه شئ په اتفاق اوسئ.

اکرام د سعید په ووږه لاس واچولو او لکه دوه خواږه رونړه او دوستان د کور نه رابهر شول. ورندار او ګلون یو بل ته په خوږو سترګو وکتل. خوشحاله غوندې راغلې. په کاروبار لګیا شوې. چې د مېلمنو د چایو او روټئ بندوبست وکړی. څه لږ وخت پس ورله عذرا هم رابهر شوه او کار لګیا شوه

# په ماته پسې کرکنده وی

څرنګ چې نور کله د دوی د یو خانے کېدلو معمول و. هم هغسې وحید ګلے او خپرے یوخانے شول، خو قدرتی کار و چې نن د نور کله په نسبت د خان طبیعت خراب ښونډې ښکاری. ځکه چې جیب نې تش دے. لاس نې خالی دے. د دولت شرنګ د ګلنار رنګ او د حپری او ګلی برق برق خنداګانې یې بیا د خان ذهن ته تلل راتلل او په زور سوچ کښې ناست دے

خپرے پرېږده خان دا غمونه. دا عمر دے کېږی به هدو سعید راغے او تاته نې یو څو خبرې وکړې نو څه وشو

گلې: خان خو يو غيرتي سړے دے خيريه. اوس که څه په دې ستومانه شوے دے چې ژوندے راڅخه ولې لاړ

خپرے: دا څه داسې ګرانه خبره ده. که پرون لاړو. نو سبا به نې بيامومې او که د خان خوښه وي. نو د هغه مرګ خو د چرګورې نه هم آسان دے

ګلې: نو تا ورته بالکل څه ونه ونيل وخان! که زه وے نو خامخا به مې ورله په مخ يو څو ګرمې ګرمې سپېرې ورکړې وے.

خپرے: او داسې کار به مې ورسره کړے وے. چې هډو دې طرف ته به نې بيا نه کتل

وحيد: ما ورله هم ښه خواب ورکړو. چې پلار عاق کړے نې، زه دې هيڅ خدمت نه شم کولے

خپرے: يره خان د نر بچورے نې کنه. دغه جواب ورله پکار و، ګوره، چې دے بيا دلته راشي. نو ګورو به

وحيد: ګليه ياره نن خو د روپو پيسو هيڅ درك نه لږي. څه به کوو؟

خپرے: غم مکوه خان! خدائے ثواب ګير دے

وحيد: ښه ده نور زه درڅخه کور ته ځم. لږ ساعت پس به بيا راوځم.

ګلې: ښه جي بالکل تاسو ورشئ.

خان پاڅېدو او کور ته راغے. څه کار نې و. دده د تلو سره

یارانو یو بل ته سترګي ووهلې وایه کنه څنګه حال دے؟

خپرے: یره ګلیه! چې د خان سره پیسې ختمې شوې. نو مونږ به څه کوو؟

ګلے: پاګله مونږ خو د پیسو یاران یوو. یو وحید څه شل به نور پیدا کړم. مونږ دده څه نوکران خو نه یوو. چې په بیه نې اخیستلی یوو

خپرے: که دې خوښه وی، نو ډېره ښه موقعه ده. څه چې تبنتو په هسې تش کدو به څه کوو. اوس ترې هيڅ نه جوړېږی.

ګلے: زما خو دا خیال هغه بله ورځ راغلے و، چې د خان نه تک راتګ قطع کړو. خو ته نه قلارېدې نو.

ګلے: نامرده سحر خبر شوے یم، داسې پکړ دے، چې نن ورکره د ډوډۍ درك هم نه لري.

خپرے: څه چې خو اوس به چرته بله ډنډه ولټو، تبنتېدل ترې غوره دی.

دوی دواړه پټ وتبنتېدل. خپل معزز او خوښ خان نې ناچاره او درماندہ یوازې پاتې که. خان راغے، خانے نې خوشې ولیده. سوړ اسویلے نې وکړ، چې ګلیه او خیریه تاسو هم رانه جدا شوئ. ښه ده نو په ګلنار به ورشم. چې خپته خو مړه کړم کنه. خان یواځې تش ګلنار ته راغے

ګلنار: خان راځئ څه چل دے. طبیعت مو څه خراب غوندې دے

وحید: او ګلنار ستا خیال ټهیک دے.

ګلنار: زما نه څه پرده آخر خو ما هم خبر کړه کنه. زه خو ستا په غم کښې شريکه يم

وحيد: مال مې ټول دوړه شو. صرف ستا د محبت د وجې نه خالي لاس پاتې شوم. ګلے او خبرے رانه هم وتښتېدل. اوس صرف ته پاتې نې او ستا محبت. که تا هم رانه لاس اوچت کړ. نو بيا مې په دنيا کښې هېڅوک نشته.

شمبو: ښه ښه. خان تش لاس راغلے دے.

وحيد: او شمبو نن ستا خان تش لاس راغلے دے. څه لږې پيسې مې پيدا کړې وې. خو پلار له مې هسپتال ته ولېږلې، ځکه چې د هغه ضرورت ډېر وو.

شمبو: د پلار خفګان ډېر ښه و. خو د ګلنار د حسن او محبت نه ښه نه و. دا دې څه ووې خانه! تا خو چرې هم داسې خبرې نه وې کړې. ګوره په تش لاس چرته کار کېږي. دا خو د مزو چرچو خانے دے.

ګلنار: خان شمبو ښه وائي. دلته کښې تش لاس خلق نه چلېږي، چې جېب تش وي. نو بيا مه راځه. دلته هغه خلق راځي. چې ما د پلار نه زياته خوښوي.

وحيد: ښه. نو ستا خپلې وعدې هېرې دي.

ګلنار: خان د ډمانو وعدې تشې وعدې وي. محض هم وقتي خبرې دي. صرف تېوقې وي. کم عقله هسې خان مه غولوه.

وحيد: ښه ده ګلنار لاړم درځمه. بيا به هېڅکله دې خانے

ته نه راخم.

ګلنار: نه نه ولې؟ هر وخت راخه، خو چې لاس دې ډك وي.

شـمبو: او جـې د مامـا کـور دې خپـل دے. دانـې راوړه او شومبلې وړه.

ګلنـار: زه بـه نـن سـتا د کلـی نـه رخصـتېږم. هسـې خوشـې عمر نه شم تېرولے. نوره دهنده مې دلته نه چلېږي.

وحید: ستا خپله خوښه ده. ډمې خان له اوس بل وحید وګوره.

ګلنـار: چـې دا ښانسـت او ګنګـرو لـرم، خـان لـه بـه ډېـر وحیدان پیدا کړم.

وحیـد: سـترګې مـې خپلې د خپلـه لاسـه پټـې کـړې وې، اوس هوښیار شوم. خو خوار شوم.

وحیـد د ګلنـار نـه تـش لاس رخصـت شـو، د دنیـا فکرونـو پـه سـر راواخیسـتو او تـنګ شـو، خپلـو یـارانو تـرې نـه هـم ډېره وکـړه او بیـا د ګلنـار جدائـی خـو نـې پـه زړه ډېـر غـټ زخـم پیـدا کـړ. ده پـه زړه کښـې اراده وکـړه، چـې بغیـر د غـلا نـه اوس بلـه هېـڅ لار نـه شـته د غـټ خـان زوے یـم. څـنګ بـه چاتـه خپـل لاسـونه خـواره کـړم او سـوال بـه وکـړم. مـور او نیـا هـم مـړول غـواړې و هلتـه نـې پـلار پـه هسـپتال کښـې دے. هلتـه هـم څـه لېـږل پکـار دی. دا سـوچونه دده زړه تـه بـار بـار راغلـل او د نـن نـه پـس دے وحیـد نـه، بلکـې یـو ډاکـو شـو کـور نـې پرېښودلـو او د مخـرور پـه شـان شـو، ګـوری چې څـه کېـږی، خکـه چـې سـوال کـول ده تـه ګـران دی او پـه خوښـه څوك چاله څه نه ورکوی.

هلته د اکرام د مبلمستوب دور ختم شو، پوره ورځې په مېنځ کښې تېرې شوې. د ولايت نه راغلې هم په دې شرط و. چې نوکرې به هم په خپل ملک کښې کوي. خکه چې د حکومت په وظيفه ئې سبق ونيلې و. خان ئې تيار کړ. کپړې ئې برابر کړې، د کور نه ئې رخصت راواخيستو، پلار ترې تپوس وکه بچيه چرته ځې؟

اکرام: داجي د لاهور په غټ هسپتال کښې مې د نوکرۍ منظوري شوې ده، هلته کښې دويم نمبر غټ ډاکټر مقرر شوے يم، د زړونو د ناجوړه خلقو په وارډ به مې ډيوټي وي. ددې خبرې سره د سعيد د سترګو نه اوښکې راروانې شوې او ژړغونے غونډې شو اکرام ترې تپوس وکړ ولې سعيده ژاړې ولې؟

سعيد: لالاجي په دغه وارډ کښې زما پلار پروت دے. اشرف خان نوم ئې دے، که ورغلې نو ډېر ښه غور ئې وکه، ډېر ناجوړه دے.

اکرام: تاله شرم نه درځي چې هغه ته پلار وائې. هغه ستاسو سره څه خوني کړے دے، خم چې کور حال ووايم.

دے په منډه کور ته راغے. مخکښې ددې نه چې دے څه ووائي ترور ئې پرې مخکښې شوه:

ګلون: ښه ده بچيه چې راغلې کنه، ما خو دريسې خوک درلېږلو، چې ما وينې هله به ځې.

اکرام: ولې ترور بي بي څه خبره ده؟

ګلون: او بچیه! ته چې کوم هسپتال ته خې، هلته د سعید پلار پروت دے. خامخا به د هغه خنګ له ورخې، د سعید سلام او زما سلام او دعا به ورته ووایې او لکه د خپل زوے به ورله خدمت کوې، د هغه هلته هېڅوک نشته. ددې خبرې سره ګلون سلګو ونیوله او په هټکو هټکو نې وژړل.

اکرام: بنه ده نو چې ته وائې کنه دې خبرې له خو زه جنګ له راتلم. خکه چې سعید راته ووې، چې هلته زما پلار دے. نو په تا پسې رپورټ له راغلم. ولې چې تا هم سفارش وکړ، نو بیا به نې خامخا غور کوم.

عذرا: لالاجي بالکل د خپل پلار په شان خدمت ورله وکړې.

اکرام: بس نو اوس خو مې غوږونه ساړه دی. بالکل غږ نه شم کولې لاړم خامخا به نې غور کوم. السلام علیکم.

اکرام رارون شو. ورسره په جلب کښې قباد خان او سعید هم دی. په لارې رارون دی خبرې کوی.

قباد: بچیه کله به بېرته کور ته راشې؟

سعید: لالاجي! زر راشئ زما خو ډېر یادېږې.

اکرام: خنګه به راشم سعیده! آخر نوکری کول هم غواړی. ته خپله ډیوټی بنه پوره کوې او په ما نه کول غواړې. زه به هم داسې ډیوټی کوم لکه چې ته کوې، ستا نه مې بنه سبق زده کړے دے. خدائے دې تا هم په خپله لار کښې کامیاب کړی.

قباد: نه راتلل خو دې بد نه دی. که چهټی دې اخیستلے شوه، نو

اکرام: ولې داجي څه خاص ضرورت دے څه؟

قباد: او خيال مې دا و، چې د سعيد واده وکړم پردے نوکر دے، هسې نه چې ددې خانے نه نې بدل کړي. نو يواځې به څنګه بل خانے ته لاړ شي او عذرا هم په کور کښې تنګه ده. ګذاره نه شي کولے شرمېږي او دے هم کور ته آزاد نه شي راتلے.

اکرام: ګورئ داجي په دې کښې ماته څه ضرورت دے. که ستاسو حکم وي نو خامخا به راشم کنه چې تاسو نې نو زما څه ضرورت دے. سعيد زما کشر ورور او عذرا زما کشره خور ده، ته نې پلار نې، خپل کور دے. د عامو پښتنو په شان په ډنګ ډونګ د واده څه ضرورت دے. د بې ځايه نمائش نه څه جوړېږي. مولوي صاحب راولئ او نکاح وکړئ. بس شرعي واده به وشي، هسې هم د دوی د اوسېدلو بل ځانے خو نشته کنه!

قباد: زما هم دا خيال و، خو...

اکرام: نو بيا پکښې ستاسو خيال د هر ځانه معتبر دے

قباد: خير کله ناکله راته دا سوچ راشي چې هسې نه ګلون نه دا معلومه شي چې زما پلار نشته او جائيداد مې دوی ته پاتې شوے دے. زما د زوے واده نې سوړ وکړ او احساس کمتري کښې اخته شي.

اکرام: زما دا يقين دے داجي چې ترور بي بي يو داسې ښځه ده، چې هغه تاسو د خپل پلار نه کم نه ګڼري. بل هغې ته دا څه معلومه ده، چې دوی زما د حصې جانداد غله نه دی. سو

ولې به دا خیال کوی باقي خو ښه ستاسو ده.

قباد: سعیده بچیه ستا څنګه خوښه ده، غلي کېږه مه
ووایه کنه.

سعید: ماماجي! د لاجي خبره مې خوښه ده، هسې د
فضول خرچۍ نه څه جوړېږي نه. خیراتي ډوډۍ به وکړو. او
شرعي رسم به ادا کړو باقي خوښه مې د مور ده، خو زما دا
یقین دے چې هغه به هم دا صلاح خوښه کړي. ځکه چې دا
ډېره غوره خبره ده.

دوی په دې صلاح شول، اکرام لاړو رخصت شو، پخپله
ډیوټۍ ودرېده، درې ځلور په مېنځ کښې تېرې شوې، ناڅاپه
قباد خان ووې: هلکه مشره سبا د څه ورځ ده؟

مشر: یره خان سبا خو د زیارت ورځ ده.

ددې خبرې سره خان سپک پاڅېده او ګلون ته نې غږ وکړ:

قباد: خور یه خور راشه ته د عذرا مور څه شوه؟

هغوی دواړه راغلې او دوی درې واړه کېناستل.

قباد خان: سبا دزیارت ورځ ده او زما دا خوښه ده، چې د
عذرا نکاح وشي. سعید هسې هم د درې و ورځو نه په
سرکاری ډیوټۍ دے. پته نې نه لږ ی هسې نه چې چرته بل
طرف ته نې ولېږي.

فرحت: زما لور به داسې ودرېږي لکه نینځکه.

ګلون: پرېږده خور ورور مې مه ستړے کوه.

قباد: ښځې خو لېونۍ وی دا به وائي کنه.

فرحت. په خندا شوه. هيڅ مې نه وې خو هسې ستاسو خيال مې معلومولو کنه. دا خو د سعيد خپل کور دے. د واده پکښې څه سوال دے.

سعيد کور ته راغے. دوی په جرګه وو. سعيد د ورايه غږ وکړ: ماماجی! زه به سبا او بله ورځ نه يم. څه خاص کار دے. د پوليسو په ډيوټۍ لاړم. زما انتظار به نه کوئ. دوی ټولو ويې ښه ده بچيه په مخه دې ښه. خو که وزګار شوې، نو زر راځه حصار پره مه.

سعيد ناخبره تانړې ته لاړو او دوی دلته د واده په انتظام مشغول شول. خان و څه کمے و. زر زر نې جوړې جامې او کالی راوړل. خان يو سنډا د خدائے په نوم حلال کړ. د کلی محلت خلقو له نې خبراتی ډوډئ وکړه. د جمعې ورځ ده. عذرا ناوې شوې په کټ کښې ناسته ده. خپلې همزولې ترې نه چاپيره دی او ددې مخ پټ دے. قباد خان راغے.

**قباد:** خور مبارك دې شه ناوې دا اوس ستا لور ده.

**ګلون:** ستا دې مبارك شی وروره. سعيد ستا زوے دے او دا ستا لور ده. ما بدقسمتې ته ګوره او ددې لور کېدو ته.

**فرحت:** مه وايه خور، ته د چا نه ناکاره نې. دې ته وګوره او تاته. دا خو ستا د ښېنو خاورې هم نه ده. مبارك شه.

**ګلون:** ورندار ستا لحاظونه به مې هېر نه شی.

**فرحت:** د خوابښې اينګور په مينځ کښې څه تعلق پکار وی خور؟

**قباد:** ته دې ته خونه مه ښايه. دا ستا نه ښه پوهه ده.

گلـون زمـا د سـر نـه داسـې خوابې تېـره شـوې ده. چـې هغـه خـو د دوزخ لمبـه ده لمبـه. دا خـو زمـا لـور ده. زمـا د زوے د ژونـد آخـرى آرزو او خـواهش دے. زه بـه دا داسـې وسـاتم لکـه چـې سوے لاس ځوك د اور نه ساتى

پـه دې خبـره دوى ټـول پـه خنـدا شـو او عـذرا هـم پـه خوړنـد سـر پټـه پټـه وخندېـده ولـې چـې نـن ډېـره خوشـحاله وه. خكـه چـې سـعيد بـه پـه غرېـدلو سـترګو وويـنـى. قبـاد خـان بـاهر راغـے. كېنـسـتلو مشـر تـه نـې ووې، مشـره مولـوى صـاحب تـه ووايـه چـې بېګاه لـه راشـى. د سـعيد نكـاح كـوو. تاسـو يـو څـو مشـران بـه هـم راشئ

مشـر: مولـوى صـاحب هـم اوس راځـى. خكـه چـې پـه جماعـت كـنبـې نـې وے. خـو چـې خـان لـه مبـاركى وركـړو او د كلـى مشـران هـم راځـى. خـو چـې راغلـل بـس كـارروايى شـروع كـړئ، شـپې تـه څه ضرورت دے

لـږ وخـت پـس مولـوى صـاحب راغـے او د كلـى مشـران هـم راغونـډ شـول. هـر سـړے وانـى خـان مبـارك شـه، سـعيد ډېـر ښـه هلـك دے. ښـه دې وكـړل، نـن سـبا خـو ماماګـان خـورئى هـډو پېژنـى نـه، خـو تاسـو داسـې كـار وكـړ، چـې دا بـه پـه دنيـا كـنبـې نوے كار وى

قبـاد: زمـا پـه هغـوى هېـڅ لحـاظ نشـته، د هغـوى د نيكـه دولت دے او د ګلـون د پـلار نـه پـاتې شـوے دے. حرام مـال څـه وى چې سړے پرې خان موړ كړى وګورئ تاسـو دغـه څـوك پوليـس نـه دے راروان؟

مشر: او او څوك سرکاری نوکر دے.

قباد: نوکره چرته راغلے خیر دے سعید څه شو.

نوکر: خان زیرے مې دربانديې سعید پولیس انسپکټر شو.

قباد: ولې په څه خوشحالئ کښې؟

نوکر: پرون ډی ایس پی صاحب راغلے و. د هغه ریکارډ نې ولټولو. نو ډیره ښه ډیوټی نې کړې وه. نن سبا دلته د برکلی د خلقو نه خلق ډیر تنګ راغلی دی. هره شپه غلاوې یا څوك مړ او یا چرته په لارې څوك لوټلے شی راشی. پولیس هم ډیر تنګ راغلل. نو ددې وجې نه ډی ایس پی صاحب سعید له دا عهده ورکړه او دا علاقه نې هغه ته حواله کړه. چې امن و آمان بحال کړی.

قباد: سعید ډیر خوش قسمته سړے دے. خدائے دې ورله عمر ورکړی. کښنه نوکره ډوډئ دې خوړلې ده؟

نوکر: او جی هرڅه مې کړی دی. تادی مې ده. د شپې نه به په ډیوټی ودریږم، خو سعید راته ووې چې لاړ شه مامې مې خبر کړه.

قبد خان زر جیب ته لاس کړ او پنځوس روپی نې نوکر له ورکړې. څه په مخه دې ښه او سعید ته ووایه. چې ستا واده وشو. عذرا ناوې ناسته ده. مور او ماما دې انتظار کوی. بیګاه له نکاح ده، چې خامخا لږ وخت له راشې. بیا به خې

نوکر لاړو، قباد د خوشحالئ نه دننه کور ته راغے. فرحت. ګلون. عذرا درې واړه واورئ او مبارك شئ سعید انسپکټر

شو او زمونږ په دې تانړه باندې پاتې شو، نوکر راغلے و. زبرے مې ورله ورکړے دے لاړو. دے زر بیا د کور نه رابهر شو، چې د میلمنو سره کېنې ګرمه ګورمه ده، مشران ناست دی. ناڅاپه د جېب غرها شو. څه نږ وخت پس جېب حجرې ته راغے او سعید ترې نه په وردۍ کښې راکوز شو، ورسره آته نهه پولیس دی. ټول خلق پاڅېده او سلام نې وکړ. سعید رامنده کړه او د ماما په پښو راپرېوتو. ماماجی ستاسو په ما ډېر لوئے احسان دے، کنه زه د دې عهدې قابل نه وم.

قباد: بچیه، دا ستا خپل قابلیت دے، خوك د چا په وینا نه بنه کېږی. بنه ده کېنه چې د نکاح رسم ادا کړو، نو بیا څه ډیوټی دې کوه.

خلق کېناستل. مولوی صاحب خطبه ولوسته ایجاب او قبول وشول. مولوی صاحب له خان شل دېرش روپۍ ورکړې، مولوی صاحب ووې مهر به څه وی.

قباد: د ګلون د پلار حصه یعنې زما نیم جانداد په مهر کشې د عذرا او سعید شو. خلق ډېر خوشحاله شول او د خان نې تعریف وکړ. مولوی صاحب ووې، چې داسې په شریعت پابند خلق ډېر کم پیښېږی.

نکاح وشوه او سعید بهر د بهره رخصت شو او وې وئیل:

سعید: ماماجی زه په ډیوټۍ لاړم، غله ډېر شوی دی.

قباد: څوك غله دی. چرته مخروران دی که.

سعید: هېڅ مخروران نشته، خو وحید خپل جائیداد ختم

کړے دے اوس غلاګانې کوی، نور څوك دی

قباد: هلکه خیال ساته، هغه دې ورور دے. خیر دے که ستاسو سره نې بد کړی دی. ته ورسره بد مه کوه سپیتوب هم دې نه واني

سعید: زما د هغه نه د خپلو بدو بدل اخیستل هېڅ په خیال کښې نه راځی ماماجی! لیکن د قانون د لاس نه هغه بالکل نه شی بچ کېدلے.

قباد: هرڅه چې وی خو خیال نې ساته.

سعید: ماماجی تاسو غم مه کوئ. زه به هر ممکن کوشش کوم، چې وحید ژوندے ګرفتار کړم.

قباد: مور به دې ډېره خفه شی ګورے.

سعید: ماته ښه پته ده، ولې څه وکړم زه بحیثیت د یو انسپکټر څم، د هغه د ورور په حیثیت نه. دا زما فرض دی ماماجی څه چې د قانون لاس زما د هغ مرئ ته واچولو. تاسو دعا کوئ. چې خدائے پاك په دې لاره کښې کامیابی راکړی. ځکه چې ددې واقعاتو سرکولو دپاره زه انسپکټر مقرر شوے یم خدائے دې وکړی، چې زما نه سستی ونه شی او زما د ورورولئ خیال به زړه کښې رانه شی او خپل فرض پوره کړم.

قباد: ورځه په مخه دې ښه. ته زما نه ښه پوه نې. دا ستا فرض دے. زه تا د خپلو فرضو پوره کولو نه، نه منع کوم.

سعید رخصت شو او ددغې شپې نه د وحید په تلاش کښې شو. ځکه چې د وحید نه خلق ډېر تنګ راغلی و. غلاګانې نې

شروع کړي وي. کله جېب پرېکړي او کله د چا کهنډر ته ونښلي. آخر حکومت تنګ راغی او د وحید د تلاش دپاره ئې د پولیس یو ګروپ مقرر کړ، چې زر تر زره ئې ګرفتار کړي ددې ګروپ مشر انسپکټر سعید شو.



# لړزان

داسې وخت راغے. چې د آرام شپې ورځې تېرې شوې. نن سبا هر سړے په لړزان دے. د هر سړي په زړه کښې يره ده. يو طرف ته خلق د غلو او ډاکو نه يرېږي. چې کله به وحيد غوته کوی او زمونږ کورونه به لوټي. بل طرف ته پوليس سره د انسپکټر سعيد په لړزان او تکليف دی شپه رونړه وی.
پوليس هم يرېږي، هسې نه چې د ډاکوانو د ګروپ سره ئاخ‌پي مقابله راشي او شکست وخورو. هغوی ته څه پته ده. چې د ډاکوانو ګروپ چرته دے. خو صرف وحيد دے. چې په خلقو ئې قيامت جوړ کړے دے
بل طرف ته انسپکټر سعيد دے. خطرې اخيستلے دے چې که چرې ددې ډاکو په ګرتارۍ کښې سستي وشوه. نو دوه

طرف تـه بـدنامي ده. يـو خـو دا چـي زه فـوري طـور ددې كـار دبـاره دومره لـوني عهـدې تـه رسـولے شـوے يـم. بـل دا چـي خلق بـه واني وروړ مې دے. خكه ورته څه نه واني

دا خـو پريـږده. چـي د قـانـون او فرضـو پـه ميـنـځ كـبـې كشـمكش دے. لـيكن هغـه خـوا عـذرا پـه لـړزان ده گلـون د يـري ريبـري او فرحـت خـو هـدو داسـې وارخطـا ښكـاري. سـړے بـه وانـي. چـي د نـرنج پـانړه ده. خكـه چـې لـور نـې واده شـوه او خانـدان نـې پـه سـتركو ونـه لـيده گلـون وانـي. چې نـور څه دي خـو خلق بـه راتـه واني چې كـوره دا بدقسمه وه كنـه. زوے لـه نـي واده وكـه او اينگـور يې پـه اولـه شـپه كونـډه شـوه قبـاد خـان پـه سـوچ كـبـي دے. چي څـه بـه كـېږي او سـركاري نـوكري ولـې سـړے قبولـه كړي. چې هغه دې د سرى د زړه آرام. خوب او قرار يوسى.

د ټولـو نـه زيـات لـړزان پـه اشـرف خـان دے. خكـه چـي اكـرام د رسـيدو سـره د هغـه وارډ تـه لاړو د هغـه سـره يوخانـے شـو. تـول حـال احـوال نـې ورتـه ووې. اشـرف خـان غريـو ونيولـو او د اوښكـو نـه نـي سـتركې ډكـې شـوې. واقعـي مـا لـوني جـرم كـړے دے. مـا د گلـون سـره ظلـم كـړے دے. زمـا مـور دا زيـاتـے قصـداً پـه مـا كـړے دے. كـنـه نـه بـه مـې وروړ مـړ و او نـه بـه گلـون دړ پـه دړ وه اوس بـه مـې زوے ډاكـو ولـې جوړيـده او بـل زوے بـه مـې پـه هغـه پـسـې مـرگ لـه ولـې گرخيـده او پـه چغـو شـو مـا پريـږده. ډاكټـر صـاحب ما پريږده

اكـرام تـه نـه شـې تلـے. پـه تـا كـبـې د حـادثې قـابو نشـتـه دے خانه.

اشرف مالہ اجازت راکہ ډاکټر صاحب د خدائے دپارہ

ډاکټر دا نہ شی کیدے. دا نہ شی کیدے اوں تالہ سوچ پکار و. تا بہ او بہ بہ پیژندل زما د ترور سرہ دې ظلم کړے دے. ددې ظلم بدلہ تالہ پکار دہ. چې سزا تالہ درکړے شی

اشرف خان: او ډاکټر صاحب دا سزا مالہ پکار دہ. لیکن تہ نہ گورې دا زما سزا نہ دہ. نور څہ دی. چې یو زوے مې بل زوے پسې مرگ لہ روان دے. ښځہ مې پہ پردی کور ناستہ دہ او زہ دلتہ ناجوړہ یم د دې نہ غټہ سزا څہ کیدے شی ډاکټر صاحب!

ډاکټر: زما پہ خیال تالہ واقعی تلل پکار دی ھسې ھم اوبہ سر نہ اوبنتی دی. اوس څہ نہ کیږی. لاړ شہ کہ نور څہ نہ وی. نو د خپلې بوډۍ مور خدمت خو بہ وکړې کنہ

اشرف: کہ زہ خدائے اورسولم. نو تہ بہ وگورې. چې زہ د دغې مور څومرہ خدمتونہ کوم او د خپلې دغې ښځې سرہ څہ سلوک کوم. خپل زوے بہ پخپلہ مړ کړم دوی د خاندان د عزت اخیستلو ذمہ وار دی. ډاکټر صاحب.

اشرف خان د ژړا نہ ډک پہ ناجوړہ صورت د ھسپتال نہ رابھر شو. د گاړی تکټ ورتہ ډاکټر اکرام ورکړ بہ پہ حوصلہ نې کہ سوچ وکہ تادی مہ کوہ. د وخت سرہ کار کوں د ھوښیار سړے کار دے. خو دا واورہ! نہ خپل کور تہ مہ ځہ. بلکې زمونږ کلی تہ لاړ شہ، ھغہ ھم ستا کور دے. زما ترور وے کہ دے بہ شو. نو دلتہ بہ راځی. پوھہ شوې

اشرف: خنگه به ستا د ترور کره لاړ شم په کومو سترګو به مخامخ شم

اکرام: دا خو ستا خیال دے خانه! هغه ډیره نیکه ښځه ده، ستا ډیر ښه زوے دے. هغوی ته هډو دا محسوسه نه ده، چې ده لا زمونږ سره زیاتے هم کړے دے. زما دا یقین دے اولتبه به ستا نه معافی وغواړی. زما خبره اومنه، خه به مخه دې ښه.

اشرف خان د کور مخه ونیوله، دلته وحید نن بیا د څه پیدا کولو په تلاش کښې دے. د مازیګر وخت دے راروان دے د لرې نه یو موټر دوړه وکړه، دے خوشحاله شو. خه که خبر وی نو کار وشو منډه نې کړه او یو غټ ګټ نې سړک ته راوغورځولو. موټر راغے ودرېدو وریکښې یوه ښځه او یو سړے ناست دی. ده مخ په توره کپړه کښې پټ کړے. تمانچه په لاس ولاړ دے

ډاکو: یو بل ته مه ګورئ، که خان مو روغ خوښ وی، نو چې څه درسره وی راکړئ.

مېلمه: په وروره زمونږ سره څه دی، مونږ مسافر یوو، د خوراک دپاره څه لږې پیسې شته، که دا دې پکار وی، نو واخله، خپله ګذاره به پرې وکړې

ډاکو: مېلمه خبرې مه آروه، زه د چا نه سوال نه کوم، دا مې عادت نه دے هر څه چې وی سړک ته راګذار کړه

مېلمه: آخر وګوره زنانه راسره ده، ددې خو لحاظ وکه کنه ظالمه!

ډاکو: ها ها ها! د زنانه لحاظ وکړم. زړه مې غواړي چې اول خو ددې د سر نه ګولۍ وباسم. خکه چې زه د زنانه و د لاسه تباه ګرځم. که ګلنار نه وے، نو دولت به مې ډېر و. مېلمه خبرې نه مخکښې به دې ګولۍ د سینې نه وباسم او دا زنانه به دې کونډه کړم.

زنانه: اخر ته خپله خور نه لرې، زه خو ستا خور یم.

ډاکو: خبرې مه اوږدوه. زه خور نه پېژنم. زما خور نشته. نو څه به خور کړم. څه مو خیال دے چې لټولو له پخپله درشم؟ شابه پیسې راوباسې کنه دراغلم.

مسافرانو عاجزانو جېبونه ولټول. صرف درې سوه روپۍ پکښې بیاموندے شوې. سړک ته نې ګذارې کړې، لیکن وحید په هغې هم صبر ونه کړ، د موټر خواله راغے په زوره نې ووې دا دنیا په دې غاړه چې د هار دے دا دولت نه دے څه؟ په یو لاس نې د جینۍ د غاړې نه هار کوز کړ او په بل لاس نې مېلمه په سپېره د غوږ په خوا ووهلو، څیزونه نې ترلاسه کړل او موټر نې پرېښوده. نن دے په چرت کښې شو، چې څه کار وشو. نن به د ګلنار څنګ له په ډاډ مټ ورشم او هم ددغه خایه دے د ګلنار په نیت رارواں شو.

مېلمانه روان شول، څه لږ په سړک لاړل چې د پولیسو لارۍ مخې له ورغله، دوی زر موټر ودرولو او سړے ترې نه کوز شو څوک افسر درسره شته کنه؟ سعید راکوز شو او ورو غوندې یې د مېلمه په اوږه لاس کېښوده او وې ونیل:

سعید: زه پولیس انسپکټر یم. ولې څه خدمت. ته خو څه وارخطا غوندې یې

مېلمه: ستاسو نه لرې مخکښې راته ډاکوانو لاړ بنده کړې وه. مونږ نې ولوټلو. درې سوه روپۍ او زما دېنځې هار نې یووړه. تباه نې کړو. انسپکټر صاحب تباه

سعید وارخطا کېږه مه. مونږ هم ددغې ډاکو په تلاش یو. افسوس لږ وخت مخکښې راغلې وې. نو څومره بنه به وه. مېلمه څه نې ونه وے چې جرته خم، تا ترې هېڅ زده هم نه کړل

مېلمه هېڅ نې هم ونه وې. صرف دومره پوه شوم. چې د ګلنار نوم نې واخیستلو. خدائے خبر چې ګلنار څه ده او څوک ده؟

سعید: بنه ده مېلمه ته خه په مخه دې بنه او مونږ په دغې ډاکو پسې لاړو سعید زر ګاړی ته وختلو او پولیسو ته نې ووې. چې نن به د ګلنار د کور نه درك لږی، هسې نه کېږی. هرڅه چې دی هم په دغه کور کښې به وی دوی نېغ د ګلنار د کور لاړ ونیوله. خو نیت نې دا وکړ. چې لږ ناوخته به ورشو. هسې نه چې خوك رانه خبر شي

وحید مال دولت راواخیستلو. راروان شو چې نن به زه د ګلنار نه د هغې د غرور بدله واخلم دا دولت به ورله په مخ وولم او خپل عزت به ترې نه واپس واخلم په سوچ سوچ کښې ډېر ناوخته دے د ګلنار کور ته راغے ګلنار ناسته ده. شمبو نې پښو ته ناست دے. خبرې اترې کوی. ناڅاپه د دېوال نه کور ته

چا راتبوپ کړل. ګلنار ورېهانې الله خدایه ډوبه شوم او شمبو ددې په خوا پورې جوخت شو

وحید: (په پټ مخ) پرهېږی مه. زه وحید یم څه غل خو نه یم.

ګلنار: هانې وحیده بس که داسې تیوقه څوک کوی. لکه چې تا وکړه. زما خو دې زړه د یرې نه وښکه ظالمه! راخه راخه هله شمبو نغرې تود که. چائې باندې کړه.

وحید: خبردار شمبو که د خپل خانې نه وخوزېدلې. نو سورې به دې کرم ګورې

شمبو: زما څه کار دې. زه خو د خان نوکر یم

وحید: پاخه ګلنار' د دولت ډمې او د دولت بنیادمې. ستا سره د انسان څه قدر دې. چې خوار شوم نو کلے دې راته پرېښودلو او چې مالدار وم. نو زما کلی ته راغلې وې. دولت خومره ښه څیز دې. وګوره نه زما سره څومره ډېر دولت دےنن راشه وخانده په خندا د دا هرڅه واخله راشه

ګلنار راروانه شوه. خو رېپېدونکې غوندې او دا نې خیال دې. چې د وحید آواز نن څه بدل غوندې دی. د یرې نه نې پښې رېپېدلې او د وحید خواله راغله. وحید ورته په غټ اواز ووې:

وحید: دا هرڅه واخله ګلنار' خو زما عزت ماته واپس کړه

ګلنار. خانه' نللے عزت هېڅوک چاته نه شی واپس کولے. دا ګران کار دې. خکه خو خلق د عزت دپاره ډېرې قربانۍ کوی

**وحید**: هر څه چې کېږي ګلنار، زه ستا نه خپل عزت غواړم

**ګلنار**: دا ناممکنه ده خانه~ چې یو کار بنده کولے نه شي. نو څه به نې وکړي. زما کار ګډېدل او دخلقو عزت اخیستل دي. چا له عزت ورکوونکے زنانه په کورونو کښې دننه ناستې وي. د هغوی په پښو کښې پانزېبونه پراته وي، ګونګرې نه وي د هغوی په لاسونو کښې سممې وي. باجې او دکړې نه غړوي. دا سوال زه نه شم پوره کولے دا زما کار نه دے. تاله د وخت نه مخکښې سوچ کول پکار وو خانه! دوی په خبرو مشغول وو. چې پولیس راورسېدل د کور نه چاپېره شول. خو سعید هدایت وکړ. چې ترڅو زما حکم نه وی. نو هېڅوك به ډز نه کوی

وحید: بنه ده ګلناره! چې زما عزت نه شې واپس کولې. نو دا دولت دې واخله او ددې خبرې سره وحید روپې او هار د ګلنار په مخ ووېشتله. هغې چې کله مخ ده ته ستون کړ. نو وحید سمدستي لاس اوچت کړ و او ګلنار نې په ګولو سورۍ کړې وه. ستا هم دا سزا وه ډمې. بله چاره نه وه. تا دا هرڅه زما سره کړي دي. اوس به ژوند په راحته تېر کړم. ستا مرګ مې ارمان و. تا زمام خامخ ډېره بې عزتي کړې ده.

ددې خبرې ختمولو سره ګلنار سا ورکړه او وحید زر په دېوال کوتې ته اوچت شو. سعید پرې اواز وکړ

سعید ودرېږه غله تېښته مه. ښځه وژل او د ښځې نه مال اخیستل څه غېرت نه دے

وحید: پولیسه زه دې نه پېژنم. چې څوك نې. خو واوره
خپله مور مه مېراتوه او ښځه دې مه کونډه وه. تراوسه هغه
ژلمی پیدا نه دے. چې ما گرفتار کړي. زه لازم او چې ته څه
کوې، نو کولے شې.

سعید: ودرېږه درته وایم. دا زما فرض دی. د تښتېدو لار
دې نشته. گیر شوے نې ښه به دا وي چې خان حواله کړې.

وحید: زه داسې وړوکے هلك یم بچیه چې ته به مې نیسې؟

ددې خبرې سره سعید بېرته وکتل. چې پولیسو ته اشاره
وکړي، چې شابه فاېر کوئ. لیکن مخکښې ددې نه چې اشاره
وشي، دده فکر اخوا شو او وحید د موقعې نه فایده
واخیسته، په تادئ راستون او د تمانچې ډز نې وکړ. سعید نې
رسا په کخ لاس وویشتلو. پولیس راغونډ شول.

سعید: پرېږدئ زما لاس روغ دے. زه هم بچ یم. خو ډاکو
درنه لاړو، شابه گرفتار نې کړئ، ښه موقعه ده

پولیسو منډې تړې وکړې. لیکن وحید لکه د تندر د برېخ
پنا شوے و. د سعید لاس زخمی شو. د گلنار مړے نې د پوسټ
مارټم دپاره تهانړې ته راوړ او د شمبو نه نې بیان ولیکه
سعید نزدې هسپتال ته راغے. خو زخم څه خاص نه و. البته
مرهم پټئ کول ضرور و. مرهم پټئ وشوه او نن شپه سعید په
خپل تکل کښې ناکام تهانړې ته واپس شو.

وحید ښغه خپله لاړ ونیوله. د خپل کلي په خوا تېرېده.
خلقو شور پکړ جوړ کړے دے. چې څه چل وشو. خو د خلقو

يقين و، چې نن به بيا وحيد راغلے وى او ډاكه به نې كړې وى.
خلق واپس كورونو ته لاړل. ليكن گلے او خبرے د دېوال خوا ته
ولاړ دى. وحيد هم دا خيال وكړو، چې راشه شپه ده. څوك نشته
كور ته به ورشم خپله مور او نيا به هم ووينم. ده وكتل. چې د
دېوال خوا ته دوه سورى ښكار . دے غلے غوندې شو. غوږ نې
كېښودلو چې څوك دے. هسې نه څوك پوليس وى. دوى په
خپل منځ كښې لګيا دى خبرې كوى.

گلے: عجيبه خبره ده، وحيد خو ماته دومره كلك سړے نه
ښكارى خو

خبرے: زما هم دا خيال دے. د هغه خو د ښځو په شان
رنګ دے مړه. د ډمانو ملګرے به څه ډاكې وكړى.

گلے: او كنه يار آبله ورخ خلقو په جومات كښې دا بحث
كولو. چې ښه ده سرپه تاسو ترې نه جدا شولئ كنه اوس به د
خپلو كورونو نه بهر وئ. دا غلاګانې به مو كولې.

خبرے: ماته هم خلقو ووې. خو ما وے مونږ خو ورسره هله
ګرځېدو. چې خان راته ښه ښكارېده، څه خبر وو. چې هغه په
ډمانو او جوارګرو پسې شو او لاوس په غلاګانو شو.

گلے: يره هرڅه چې وو كنه. خو د خدائے فضل وشو. چې
خلاص شو ترېنه.

خبرے: حېران په دې يم چې دا خلق ترېنه دومره يرېږې
ولې

ددې خبرې سره وحيد غږ وكړ، چې خبردار د خپل ځائے نه

ونه خوځي او دا خبره څه وه. چې دوی په ريبدو شو. وحيد نژدې راغی او ويې ونيل:

وحيد: بې غېرتو هغه ياران تا سو وئ چې زما په دولت پسې زما ملګري وئ. اوس وايئ چې دده د ښځو په شان رنګ دی. زه جوارګر وم، ډم باز وم، خو ستاسو غونډې بې غېرته نه يم. چې چرته ښه هلته شپه. که خپل جائيداد مې ختم کړ. خو د نورو نه هم په غېرت اخلم ګلنار مې مړه کړه او د هغې د غرور سېپېره مې ورله په مخ ورکړه، اوس ستاسو وار دی. تيار شئ.

ګلې: خان زما د پلار توبه ده. دا دې مورغود دا هرڅه په ما ده وکړل. کنه زه کله جدا کېدم. ستانه.

خېرې: دې دروغ واني خانه! قسم مې دې په خدائې وی چې ده راته ونيل چې پربړده مړه تش کدو دی. اوس پرې څه کوو.

وحيد: هرڅه چې دی که تا ونيل دی او که ده، زه مو پېژنم نور ستاسو په خبرو نه غولېږم. بې غېرته سرې مې بدي شي او بيا تاسو خو ضرر رسان نې. بل ته به ضرر پېښې کړئ. ددې خبرې سره وحيد تمانچه وچته کړه او په سر سر نې ګلې او خېر ووېشتل دې لاړ پنا شو. شور شو خلقو رامنډې کړې. چې ونې کتل نو خېرې او ګلې په وينو کښې لت پت مړه پراته دي. اوس خو د کلي خلقو ته بالکل يقين وشو. چې واقعې هرڅه چې کېږي. هم وحيدخان نې کوي. بل څوک نه دی

خلقو جنازې اوچتې کړې او ناوخته خلق خواره شول. د هر

سړی زړه په لړزان دے، چې څه به کېږی. خو خلقو پټ پټ ونیل، چې دوی داسې بنه وو. چې مالداره و، نو دوی نې ملګری وو او چې غریب شو، نو دوی ترې جدا شول د دوی هم دا سزا ده، هسې نه نور نور خلق به نې په بده اړولی وو. دوی خو یووړل شول لیکن د خلقو د زړونو لړزان نور هم په زیاتېدو شو، چې اوس خو ګذاره ګرانه شوه، د وحید نه بچ کېدل ګران دی

# نازو

لکه څنګه چې د کلی نور خلق په ځانې وی دی. داسې نازو هم د ډېر وخت راسې په سوچ ده، چې څه به کېږي؟ وحید ناکاره او یو بې درده سړ دے، په هېڅ وج نه خوری. خپل ورور نې آبله ورخ په تمانچه وهشت. خپل ملګری نې مړه کړلو دا نه چې نازو د یرې نه په سوچ ده بلکې دې غم اخیستلې ده. چې سعید او مور نې تېول ژوند دلته په سخته او تکلیف کښې تېر کړے و، اوس نې د ماما په کور هم وحید په قلاره نه پرېږدی. نازو د ولې په غاړه په ژور سوچ کښې وه او په سوچ کښې ورته هغه زمانه رایاده شوه، چې د ګلون د غېږې نه وروکې تسنیم ولوېده او ناخبره مړه شوه. ګلون سره د وهلو کتخلو د کور نه ووېستل شوه. د نازو په مخ د اوښکو باران شو او هټکو ونیوله. په شرق شرق نې وژړل. او ورو غونډې نې وونې:

نازو: خدایه ته هڅو د غریبانانو خیال نه ساتي. په ظالمانو نظر او پام لري وګوره ته دا څومره ظلمونه شوی دی. وړه جینۍ د مور د غېږې نه ولوېده مړه شوهو د دولت دپاره وروکی کریم خان له زهر ورکړے شو هغه مړ شو. ډمې ګډېږی. وحید بدمعاشیانې کوی. د خپلو خواهشاتو دپاره نې دوه هلکان د کلی مړه کړل اوس په غلاګانو، ډاکو او نورو بدو کارونو باندې اخته دے. آخر ته ورته هېڅ نه وے. څه خو وکړه، چې لږ ویرېږی، کنه دا خلق به هم وران کاری او بد شي.

نازو ښه ګورېږی او په قار قار ده. مورآبې او نګهت هم په کتونو کښې په سوچ دی. چې څه وکړو.

مورآبې: څه عجیبه زمانه شوه لوري! اوس ښه او بد نه پېژندے کېږی. ته وګوره چې اشرف خان هسپتال ته تلے دے، نو دا د کلی یوه ښځه هم عذر له نه ده راغلې او نه راځی. دا د سپي لونړه

نګهت: مورآبې هغه اشرف خان و او اوس یواځې اشرف دے. غریب سړے دے د غریبانو تپوسونه څوك کوی.

مورابې: وئ غریب شو. نو داسې غریب شو چې د کلی خلق به ترې هڅو پرېږی نه، خان دے د خان زوے دے. د پښتانه څرمن پرې پرته ده.

نګهت: د پښتانه په څرمن څه کېږی مورآبې دولت پکار دے.

مورابې: دولت خو د لاس ښېرے دے کله خې او کله

راخي، هلکان دې خدائې ژوندی لری نور به وګټي. زمونږ خو د
ورور دوران تېر شو. سرمو سپين شو. په خپل وس يو ورله
ډېره ګټه کړې وه خو...

نګهت: او کنه دا ټول خو ستا د ګټو خبرې دي. کنه اوس
به دا هرڅه ولې کمېده. ته لږ په ګرېوان سر دننه کړه. د ظلم بله
ظلم وی

مورآبي: نن داسې کېږي وړې وړې نګهت. لکه چې د بل
خانې نې، مانه هډو يرېږې نه.

نګهت: زه پخوا کله ستا نه يرېدلې وم. چې اوس به درنه
وېرېږم او ولې به يرېږم. ته لږ خان ته وګوره. څه دې نه دی
کړی، مشران خو هغه پکار وی چې کشرانو ته ښه اخلاق او
نيکه لار وښاني، ليکن ته د کور داسې مشره وې چې ټول خلق
دې په بده اړولې وو.

مورآبي: د ژبه ورې لور ما څه چل کړے دے. چې ټول
کشران مې په بده اړولی دی.

نګهت: نور به دې څه چل کوو. څه دې نور کولے نه شو.
نو وړوکے کريم خان دې په زهرو مړ کړ. اوس چې مې راياد
شي. نو لاس مې وريږی او زړه مې ودرزېږی. چې خدايه زما
ددې جرم به څه سزا وی. ګلون دې د کور نه په څه حال
ووېستله. د سعيد سره دې څومره بد رد کړی دی، هغه
معصوم دې هډو په وړوکوالي پوهه کړے نه دے. وحيد دې
دومره سر ته اوچت کړ، چې اوس بې لګامه آس دے. په خان نه

پوهېږي. د کلي ټول لوڼي واړه ترې تنګ دي. خپل جائېداد
ئې ټول تباه او برباد کړ او د غربت دلاسه ترې يو لوڼي ډاکو او
بدمعاش جوړ شو آخر دا هرڅه چا وکړه. ته ماته ووايه او ددې
خبرې سره نګهت د قاره سره شوه او په ژړا شوه. لکه چې په
خپلو بدو ستومانه وي. ليکن اوس څه کېدې شي.

مورآبي: خدائې دې دا خلق په خپل سر ميرات کړي. ما
خو دا هرڅه ستا دپاره کړي دي. اوس هغه نيکي مې لاړه بدي
شوه

نګهت: دا نيکي به خامخا بدي کېده مورآبي' دا د يو
کس سره نيکي د ډېرو خلقو سره بدي وي

مذکور روان دے. مازيګر دے. لمر په غرغرو دے پرېوځي.
د دوی دا هنر زوړ دے ليکن نازو کله د دوی خبرې اورې. خکه
چې هغه د ولې په غاړه ناسته په پخوانۍ زمانه کښې داسې په
سوچ تلې ده. لکه چې په بيابان کښې وي. ناڅاپه مورآبي په
زوره غږ وکړ نازو په نازو ميراته شې دا غږ ولې نه کوې.
داسې دې مونږ ته غوږ اينښودے دے، خوا دې راټانـدې يخه
شوله که؟

نازو: (وارخطا غوندې) هاو هاو ابي څه چل دے؟

مورآبي: د زر مرېزې لور ته ګورې نه دا څه وخت دے. څه
کار کول نه غواړې.

نازو: څه وکړم تاسو څه ونيلي نه دي او ما کړي نه دي

مورابي: نور کله دې څنګه کار کړے دے. هغه کوه کنه

هغـه کـور دے. هغـه خـانی دہ. څـه پکښــې بـد شــوی دی. چـې تـه داسې نانګاره نې.

نــازو: هغــه کــور هغــه خــانی چرتــه ده مورآبــی؟ د څــادر ســره پښــې غــزول ښــاني. هـــسې نـه چـې د څـادر نـه پښـې وباسـی. خـان پېژنـدل ډېـر ښـه کـار دے. وګـوره تـه کـور څـومره وران ويجـاړ پـوت دے. دلته څه دی؟

مورآبــی: او کنـه تاتـه ګنـاه نشـته د شـپنکی لـور زمـا خپلـه اينګـور ماتـه پېغورونـه راکـوی. نـو تـه بـه ولـې نـه وے. څـه چـل دے. پـه کـور کښــې څـه کمے دے. غوښـه کـه وسـوزی، خـو د پيتـی نـه ښـه وی. اوس هـم خانـان يـو او بيـا بـه هـم خانـان يـوو. پـه مونـږ د پښتنو خرمن پرته ده. څه ډمان جولاګان خو نه يو سپیٔ

نــازو: پــه خــولې اوس هېــڅ نــه کېــږی مورآبــی! دا هرڅـه بـه د چـا د ســره وو. خــو هغــه لاړل تاســو وشــړل. د خــولې توکلے لاړې بېرته چرته راخی.

مورآبــی: ژبــه مــه کــوه د ژبــه ورې لــور د ړيــاځم درپيــې او داسـې کـار بـه درسـره وکـړم. چـې چـا کـړے نـه وی. اول خـل چـې ګلـون ددې کـور نـه تلـې وه. نـو تـه ورسـره تلـې نـه وې او چـې بېرتـه راغلـې. نـو داسـې شـوې وې لکـه وچ لرګے. چـې رادننـه شـوې نـو خوله دې د خندا نه ډکه شوه. د لوږې نه مړه نه وې څه ...

نــازو: هغــه بــل وخــت و مورابــی. زه اوس هــم افســوس کــوم. چــې زه موجــود وے او ګلــون بــی بــی تلــے نــو زه بــه ورســره خامخــا تلــم، د ازادئ کــه يــوه نــوړئ وی. خــو ښــه وی او د غلامــی ډك

انبارونه مې نه دي خوښ، يو د نيکنې ژوند وی او بل د بدئ وی، دلته کښې خو د شيطانانو په بازار کښې مېشته کول دی.

مورآبي: وګوره ته نګهت دې د سپين لور ته. که تا راسره بدي ردي نه وے ونيلي مخامخ نو دا به رابانندې ولې داړه وه. خو خپل هم سرے درنوی او هم سپکوی

نګهت: دا ستاسو خپل جنګ دے موږابي. ستړي شوي يم، ستا دپاره مې د ګلون سره ډېر ونيل کنځل کړی دی. په سر مې درد دے، نوره مې مه ستړې کوه، چې څه وے هغه وايه د سړی خپل عزت په خپله خوله کښې وی

موړابي. نه نه مصلحت مو راپسې کړے دے

نازو. د څه شي مصلحت، زه چا په رويو نه يم اخيستلې، چې ستاسو په مرضئ به ژوند تېروم. زه هم بنيادمه يم، خپل حق مې دے ته به کله اينګور ته او اينګور به تاته او بيا سمجهوته وکړئ. نو زما د ژوند سودا به کوئ، پيښې روغ وی او پيښې مې آزادی دی.

مورآبي: نو ته ترلي چا نې. ما خو درته ووې ته ددې کور نه يو وار وتلې نه نې. څه اوس بيا لاړه شه متيزې.

نګهت: مورآبي سوچ پکار دے. هغه وخت نه دے او ته لا هغه شان د خانئ دوران غړوې. اوس آس په سوری وتړه.

مورآبي: ولې څه داسې دنيا ورانه شوه، چې اوس هغه وخت نه دے. خپل اس په سوری وتړم. دا څه کولے شي نو ودې

کړی کنه. پرېږده اوس دا خبرې نازو او خه بهر ته چرته څه وګوره چې پاخه نې کړو. لرګی نشته سوړ نغرے پورت دے، دا دے نور پنا شو اوس به د مابنام بانګ ووانی او ته په قلاره ناسته نې.

نازو: خکه خو راته نګهت وونې، چې اس دې په سوری وتړه اوس دا هغه زمانه چرته ده. چې زه به لاړه شم او څوکیدار ته به ووایم، چې لرګی واړه کړه انګولے راوړه. اوس به چاته ووایم.

مورابی: بیا دې ژبه شروع کړه غریبه بنځه نې زما د خبرو نه نې داسې په رټو رټو راسره لګیا نې. خو که اشرف خان راغے او ما پرې ته مېراته نه کړې نو بنه.

نازو: او کنه دا هرڅه خو تا په اشرف خان وکړل. که تا ورته نه وئیلې، نو نن به ددې کور دا حال ولې و او هغه غریب به ولې د کلونو په هسپتال کښې و. کوږمه دې تولـه وړنګوله. هرڅه دې ګډوډ کړل او په لاس دې هیڅ رانغلل.

مورابی: اے جینئ ته دا خبرې پرېږدې ولې نه. زه یو څه وایم او دا بل څه راواخلی. لکه چې یور یا بن مې راسره لګیا وی، هډو پوهېږې نه.

نګهت: بنه وئ نازو! بس که اوس ورشه چرته په ډېران کانګر راغونډ کړه او لږ سابه اوشوکوه. چې ډوډئ وخورو.

نازو: کانګر او سابه خو به زه راوړمه خیر دے. ستا دا حکم به ومنم ولې وړه چې نشته.

**مورآبـی**: ولـې آبلـه ورځ چـې یـو تونـړئ تـه اچـولی وو. هغـه څه شو؟

**نازو**: کوم هغه د اسد مور چې لږ راوړی وو هغه اوړه؟

**نګهـت**: مـور آبـی! بـس کـه هغـه څـه وړه وو خـو دوه روزه وو نو.

مورآبـی: خـدائے دا پخپـل سـر مبراتـه کـه دا خـدائے ددې یـو زوی نـه خلاصـه کـه. دومره دې سـترګې کـوزې کـړې. همېشـه نـې زمونـږ نمکونـه خـوړلی دی او چـې اوس پـه مونـږ لـړه سـخته راغلـه. نـو داسـې لـږ وړه نې راکـړل. چې دوه ورځې هـم ونـه شـول. ورشه نازو د چا نه نې قرض که

**نـازو**: ډېـر قرضـونه مـې کـړی دی. پـه کلـی کښـې داسـې کـور نـه دے پـاتې چـې ورکـره تلـې نـه یـم. اوړه یـا لرګـی مـې تـرې نـه دی راوړی. نور نه شم راوړے. سترګې مې شرمېږی

مورابی: دا شته ویل کنځل دې پوره نه وو څه؟

**نګهـت**: ښـه وئ نـازو لاړه شـه. نهـره شـپه بـه ځنګـه تېـره کـړو. د غرمې یو هم څه نه دی خوړلی

**نـازو**: دا هرڅـه خـو تـا وکـړل کنـه اوس بـه دې د غـرمې هـم خـوړلې وه او د شـپې بـه هـم ډېـره وه. ښـه د پرېمـانئ بـه دې خوړلې وه.

**نګهـت**: پـه مـا پـورې مـه نخلـه. زه څـه مورآبـی نـه یـم. چـې تـه بـه لګیـا نـې او زه بـه درتـه صبـر کـوم تبرونـه بـه درېکښـې غـوږ کـړم ګورے

نـازو: دا هغـه وخـت چرتـه دے بـی بـی. چـې تـا بـه پـه خلقـو
کښـې تبرونـه غـوړول. اوس خـو تـه زمـا لاس تـه ناسـته نـې. نـو تـه
به ماته څه ووې.

نګهت: ښه ښه اوس ته په ما پسې شوې. ودرېږه ته

نګهـت د جـنـګ پـه نيـت راروانـه شـوه، لـوړ نـې راواخيسـت.
لـيکن مورآبـی ترمېنځـه شـوه او ګـوابې وشـو. ولـې نګهـت پـه
خدائې قسـم وکړ. چې که چرې نازو نـن دلتـه شپې تـه پاتې شـوه،
نو زه به د کوره وځم.

نـازو: تـه بـه ولـې ځـې، دا سـتا د خاونـدانو کـور دے. ښځـه
کور ته د يـو خاونـد پـه سـر راځـی او تـه دلتـه دوه واره واده شـوې.
ستا حق دے ته دلتـه اوسـه او مـا خپلـه غوټـه ترلې ده. دغـه دے
لاړم، اوس په دې ساعت به خان د قباد خان کره ورسوم.

نـازو خپلـه غوټـه پـه سـر کېښـوده، د ماښـام تيـاره
خوربـېـدونکې وه او پـه دروازه کښـې لاړه پنـا شـوه. مورآبـی او
نګهت هم غلی په کټ کښې کېناستې. چې څه وشـوو خکه چې
لـونې غـټ کـور او سـوړ نغـرے. وړې شـپه. بـې نارينـه کـور. يـوه
نازو وه چې بهر تـه او دننـه بـه تلـه راتلـه، هغـه هم لاړه او کـور لکـه
د ماښامی مقبرې سوړ سخ پاتې شو.

نـازو خپلـه لار د قبـاد خـان کلـی تـه ونيولـه. ګرنـدۍ ګرنـدۍ
راغلـی، خکـه چـې ناوختـه هـم دے او تـادی نـې هـم ده. پـه تلـو
کښـې کلـه مورآبـی وکنځـی او کلـه نګهـت، کلـه وحيـد تـه ښېـرې
وکړی او کلـه اشـرف خـان تـه کلـه پـه زوره پـه ژړا شـی او کلـه ورو
غونـدې ژړا وکـړی او پـوزه سـونړ کـړی. خـو بيـا هـم د همت آس نـې

ښه په توپونو روان دے او په خوشحالۍ د خپلې خوښې مېرمن کور ته په تګ ودوده. وګورې چې خپل مقصد څومره وخت پس حاصلوي. لیکن ناڅاپه نې د چا د راتلو آواز واورېده. ونې کتل چې وحید خان په منډه منډه راځغلی، ددې دا خیال شو. چې وحید جوړ په ما پسې راځغلی. د لارې یو خوا ته غلې شوه. لیکن وحید سیدا لاړو او ددې له خوا ګرندے واورېدو.

نازو دومره ولیدل، چې وحید وارخطا او ژړغونے غوندې روان و. وحید تېر شو او څه لږه شېبه پس نازو بیا خپل تګ شروع کړ



# قانون او مجرم

ټوله دنیا په لړزان ده. هر خوا د وحید د ناکردو تبس پروت دے، جینکۍ هم کودر ته تلے راتلےنه شي بلکې سره د مابنامه هر سړی د خپل کور ور بند کړےوی. چې څه به کیږی. سعید د وحید د لاسه زخمی شوےو. پولیس نور هم په غم او غصه کښې دی. وحید خپل کار پوره کړی او بیا ځنګل ته مخه وکړی. دا تلل راتلل اوس د هغه معمول دے. نن هغه په خپل پټ قیام ګاه کښې پروت دےاو په ژور سوچ کښې دے. وحید د تا څومره ظلمونه وکړل. د خپل مور و پلار عزت دې په خاورې کړ، د کلی محلت خلق دې تنګ کړل. خپله مور دې د کور نه وشړله، د خپل ورور بې عزتی دې وکړه او هغه دې د هغه د حق نه محروم کړ، یوه بې ګناه ډمه دې قتل کړه، خپل ورور

دې زخمي کړ. افسوس چې په هغه وخت تاته دا سوچ راغلے وے، په کوم وخت چې سعيد په تا پسې نصيحت له راغلے و کاش ما د هغه خبره منلے وے، اوس خو هيڅ نه کيږي. خکه چې ماته د دلاسې راکولو څوك دی. ګلنار مړه شوه. ګلے او خبرے رخصت شول. واقعي ما هغه بې ګناه قتل کړی دی. که زما خپل ذهن او عقل ټهيك وے. نو هغوی به زه څنګ دهوکه کړے وم دا ټول ګناه او قصور وحيده ستا دے او اوس هم راته دا پته نشته. چې مور او نيا به مې څه کوی. د هغوی د سر پرستئ هيڅوك نشته. آخر د يو شريف خاندان دا حال؟ دا د ټول خاندان بې عزتی ده. زه به اوس څنګه د چا په مخکښې سر اوچت کړم. سترګې به چاته اوچتې کړم. خکه چې ما خو په دنيا کښې په عزت او خوشحالئ هيڅوك نه دی پريښی زه ډير ګنهګار يم. ما ډير ظلمونه کړی دی. اوس نور هيڅ نه کيږی. خو ښه به دا وی چې خان مړ کړمه او د دنيا په دې نورو خلقو مې هډو سترګې ونه لږی. هغوی ته به څنګ مخامخ شم. که کلی ته خم. نو هم خلق به وائي. مجرم راغے. ډاکو رذاغے. غل راغے. دے قانون ته حواله کړئ. هيڅوك مې د مرستې نشته. حق نې هم دے خکه چې ما د هغوی سره ډير ناکاره سلوك کړے دے. هر شريف سړے مې بې عزته کړے دے. د خپل پلار ننګ او ناموس مې بدنام کړے دے.

خدايه ته بادشاه نې ته ما ددې ګناهونو نه بچ کړې. واقعی زه د سزا مستحق يم. ما له ډيره لويه سزا پکار ده او دغه سزا هم دا ده. چې زه خان مړ کړم

وحید زر تمانچه په خپل سر ونیوله. کلیمه نې درسته کړه.
ـترګي نې پټې کړې. مخکښې ددې نه چې ډز وکړي او مړ
ـي ورله یو سوچ راغے. وحیده که خان مړې کړې نو څه به
ـي. یو ګنهګار سړے وې او ټول عمر دې د بدنامۍ تېر کړ.
ـې په پته به مړ شې. خلق به دې بیامومي. خو واني به چې
ـا به وبشتلے وی. غل ډاکو سړے و. ښه به دا وی چې د دنیا
ـا خلق په مخکښې راشې او د هغوی نه د خپلو ګناهونو
معافي وغواړې. کېدے شي چې دا خلق تا معاف کړی، زه به د
ـوی دپاره ډېر خدمتونه وکړم. همېشه به دوی ته سرټیټ
ـکړم. لیکن چاله ورشم آخر ما د سترګو غړولو خانے کوم خانے
ـپرېښودے دے. ددې خبرې سره د وحید په مخ غټې غټې
اوښکې روانې شوې او بیا ورله یو نوے خیال راغے.

وحیده که د دنیا نور خلق تا معاف نه کړی. نو سعید خو
به دې خامخا معاف کړی. هغه په تا ډېر منین دے. ډېر شریف
ملك دے. لیکن هغه خو تا په تمانچه وبشتلے دے. هغه به تا
څنګ معاف کړی. هغه به تاته څنګه ښښنه وکړی. خیر دا څه
ـومره خبره نه ده. هغه ته دا پته وه. چې دے بدمعاش دے،
ـاکو دے. غل دے ما هغه او د هغه مور د کور نه ویستلی وو
او بیا هم هغه په ما پسې منت له راغلے و. چې وروره ته خپل
عزت مه خرابوه. اوس هم تاته موقعه ده. خپلې لارې ته واپس
ـه او د خاندان عزت شه. که چرې د سعید زړه پاك نه وے او
غټ نه وے. نو هغه به په ما پسې منت له ولې راتلو. ډز هم د
هغه د شرافت او نیکئے په مخکښې هېڅ نه دے. زما یقین دے

زما ورور به ماته دا هرڅه وبښي او دا موقعه به ماله راکړي. چې زه د خلقو د خدمت کولو جوګه شم خپلې مور له به خدمت وکړم. د سعيد مور واقعي زما مور ده. زه به د هغې پښې ښکل کړم. سعيد ته به ور تر غاړه وځم او په وچولي به ئې ښکل کړم. هغه به ماته راترغاړه وځي او واني به وروره! ما خو تاته مخکښې ونيلي. خو خير اوس دې هم ښه وکړه. چې راغلې. وخت دومره نه دے تېر شوے.

په دې سوچ سوچ کښې د ماښام تياره ولګېده. شپه پخېدو ته روانه شوه او وحيد وړے تږے راروان شو. د وحيد په خپل عمر کښې نن اوله موقعه ده. چې دے په يوه نيکه اراده د خپل قيام ګاه نه رابهر شو. تمانچه ئې په لاس کړه او د سعيد د ماما کور ته ئې مخه ونيوله. ښه ناوخته وخت و. چې دے راورسېده. د کور په خوا کښې بيا هم لږ غوندې پښه نيولے شو. چې څه وکړم که آواز کوم. نو خلق به وانې چې څوک لېونے دے او لادا پکښې هم يره ده. چې څوک ، وپېژني او لاس ترز لاسه مې مړ کړي. هډو سعيد ونه ليدے شم. ليکن که د غلو په شان ورواوړم او سعيد يا ماما ئې رابانديې د غله ګومان وکړي.ګولۍ له څه که نامعلومه مړ شم. نو د سعيد به دا خيال تر عمره په زړه کښې پاتې شي. چې دے زما نه معافي غوښتلو له نه دے راغلے. بلکې زما په مرګ پسې راغلے دے.

بيا هم دا فکر ئې وکړ. چې هرڅه چې دی خو راز به پټ پاتې شي. کېدے شي چې سعيد ما معاف نه کړي. ځکه چې هغه اوس يو قانوني سړے دے. پوليس آفسر دے. او دا د هغه

فرض دی چې غله او ډاکوان ګرفتار کړی. وحید په یوه عجیبه غوندې کشمکش کښې اخته و. چې څه وکړم؟ که واپس شم نو څه فایده. خو بیا به هم غل او ډاکو یم. ځکه چې زه خپل ورور ته مخامخ شم. نو د دنیا نورو خلقو ته به څنګه سترګې وغړوم. راشه په دېوال ورخه هرڅه چې کېږي. وحید زر زر په دېوال ختل شروع کړ، څه لږه شېبه پس وحید کور ته راواوړېده، په ټول کور کښې تیاره وه، لیکن بره ګوټ ته یوه کمره کښې رڼړا راخی. دے غلے غلے روان شو، د کمرې خواله راغے او غوږ نې کېښودلو. چې دلته څوك دی او سعید به چرته وی. خدائے دې کړی چې دا د سعید کمره وی، د وحید خان دا آرزو پوره شوه، ځکه چې دا واقعی د سعید کمره وه.

سعید د عذرا سره نوے نوے واده کړے و. دواړه په یو بل ډېر منین و، د مینې محبت ډکې خبرې نې شروع کړې دی او واني چې خدایه دا شپه هېو وتے نه.

عذرا: زه خو وایم چې ددې نوکرئ نه دې خان خلاص کړه، دا څه نوکری ده، شپه نشته ورځ نشته، وخت ناوخت نشته، خو غله دی او ډاکوان دی.ابلـه شپه لاړې نو لاس دې زخمی شو، خدائے دې ددغه غلو بېخ وباسی، بس که نوره نوکری نترڅو به بچ کېږې. آخر په چرته د یو غله په ډز ولړې او مړ به شې

سعید: بس ستا سره نور هډو څه خیال نشته، سبوا زما د ژوند نه، دا زما ژوند به تر قیامته نه وی. زه به هسې هم یوه ورځ مرم. څه وشو که د خپلو فرضو پوره کولو په لار کښې مړ

شم دا زما فرض دی.

عـذرا: د فرضـو دا مطلب نـه دے لکـه چې تـه کـوې. پولیسـان مونږ نـور هـم ډېـر لیـدلی دی، لـیکن تـه خـالص د لېونـو غونـډې کـار کـوې، آخر سـوچ وکړه، وحیـد سـتا ورو دے، څـه وشـو کـه څـه گنـاه نـې کـړې وی او یـا نـې وکـړه، تـه ورتـه معـافی وکـړه. هغـه سـتا د پـلار زوے دے. سـتا پـه شـان ښـه سـړے کېـدے شـی لـیکن هغـه تـه ناکـاره خلقـو غلطـه لار وښودلـه. پـه دې کښـې د هغـه څـه قصـور شـو. زمـا خـو دا خیـال دے، چـې کـه چـرې د وحیـد دغـه ملگـری سـتا ملگـری وے، نـو تـه بـه د وحیند نـه هـم ناکـاره سـړے جـوړ شـوے وې، خـوش قسـمتی دا وه، چې سـتا سـره ښـه ملگری پـه لاره کښـې یوځـائے شـول او هغـه بدقسـمته تـه بـد او ناکـاره ملگری په لاس راغلل.

سـعید: تـه ښـځـه نـې، غـذرا، تـه پـه دې نـه پوهـېږې، دا سـتا کـار نـه دے. زه هغـه تـه مخکښـې منـت لـه ورغلے وم، لـیکن هغـه زما منت نه دے اورېدلے.

عـذرا: پـه یـو وار منـت څـه کېـږی، زه خـو وایـم چـې سـتا د ټولـو نـه اول فـرض دا دی، چـې تـه هغـه پـه نیکـه لار راولـې او زمـا پـه خیـال ترور بـی بـی بـه هـم دا غـواړی، چـې سسـتا او د وحیـد دا فتنـه او جگـړه پـه صـلاح غوڅـه شـی. دوی پـه دې خبـرو کښـې مشـغول وو. د کمـرې نـه بهـر وحیـد ولاړ دے پـه مـخ نـې د اوښکـو بـاران دے. سـلگو نیولـے دے، پـه هټکـو هټکـو ژاړی. ناڅاپـه د دوی د سلگو او د هټکو اوازونه په غوږ شول.

عذرا: لکه چې څوك دے بهر؟

سعید: خدائے خبر چې څوك دے، د ژړا اواز راځی، زر زما دا تمانچه راکړه، چې وځم

عذرا: نه نه. ته مه ورځه. زه به ورشم خدائے خبر چې څوك دے؟

عذرا ور بیرته کړ، څه ګوری چې وحید تیټ سر ولاړ دے، مرئ یې اوچه ده. آواز به څوك وکړي. عذرا پرې غږ وکړ:

عذرا: څوك نې په دې وخت دا خانے څه کوې؟ چرته راغلے نې، د چا سره دې کار دے. دا خو ډېر ناوخته دے؟

وحید: ورندار زه یم زه وحید! سعید ته ووایه. چې بهر شی، زما ورسره کار دے.

سعید دده دا خبره واورېده. لیکن بهر نه شو او د ورایه نې غم وکړ، وایه کنه وحیده څه دی؟ ددې خبرې سره چې عذرا بېرته وکتل، نو سعید په خپلو جامو کښې نه و. بلکې زر زر نې د پولیسو کپړې او وردی اچولې وه. عذرا وارخطا غوندې شوه او ونې وئیل:

عذرا: سعیده دا څه کوې. ستا د کپړو بدلولو څه ضرورت دے؟

سعید: ته اوس زمونږ د مېنځه لرې شه. دا د قانون او مجرم ملاقات دے، د دوه وو وروڼو نه دے.

عذرا: قانون او مجرم په عدالتونو کښې پېش کیږی، د چا په کورنو کښې نه.

سعید: وایم درته لري شه. د مخې نه مې ته په دې مسئلو نه پوهېږې، د قانون احترام زما فرض دی، په چغه چغه سعید دا خبره وکړه او بیا ې وحید ته مخ ستون کړ، وایه کنه ډاکو چرته راغلې، زما په مرګ پسې؟ یا څه پیسې دې پکار دی؟

وحید: هېڅ مې نه دی پکار وروره! صرف ستا مینه مې پکار ده، د خپلو غلطیو معافي غوښتلو له راغلے یم. زه واقعي مجرم یم، زه ګنهګار یم، ما ستاسو سره ډېر بد کړی دی، مور مې څه شوه، چې د هغې پښې شکل کړم، ته راته معاف وکړه، ستا نه بښنه غواړم. زما نه ګناهونه دومره ډېر شوي دی، چې سر مې د شرم نه، نه اوچتېږي. د دنیا نورو خلقو ته خو هډو مخامخ کېدل ګران دی، ستا وینه مې خپله وینه ده، ستا نه څه پرده ده، ځکه درته معافي غوښتلو له راغلے یم، دې نکاره ژوند تنګ کړم، ستا نه اوس ښه او شریف ژوند غواړم په کومه لار لاړم، نظر مې نه لږي، تیاره ده راته، ذهن مې بالکل چلېږي نه، ته هوښیار نې ته ووایه څه وکړم؟ سعیده څه وکړم؟ د خبرې ختمولو سره وحید بیا غریو ونیولو او آواز ني بند شو. عذرا هم په هټکو شوه. لیکن سعید ووې:

سعید: زه افسوس کوم، چې د قانون غلام تاته بښنه نه شی کولے. زه ستا ورور نه یم، خو یو پولیس انسپکټر یم. ماته په خپلو ګناهګارو په غلاګانو، ډاکو او قتلونو لیدل نې، دا زما فرض دی چې زه یو مجرم ته سزا ورکړم. افسوس په دې دے چې کله زه په تا پسې درغلے وم او تا په هغه وخت زما خبره منلې وای

وحید : اوس هم ته هر څه کولے شې. وینه د وینې نه نه جدا کېږی. سعیده که ته هېڅ نه شې کولے. نو د خپلو بدو بېننه خو راته وکړه، چې غاړه مې آزاده شی کنه.

سعید : دا دې ټهیک خبره وکړه، که چرې د قانون په مخکښې ته پېش شوې، نو زه به یقینی د خپلو بدو بښنه تاته وکړم. زما مور به تا وبښی. ددې خبرې ختمولو سره سعید ستون شو او د ټیلیفون لاسته نې تاو کړ. چې پولیس خبر کړی.

وحید : سعیده! زه خو بزدل نه یم. ګوره ستا دا خیال غلط دے، چې زه د ویرې نه په تا پسې راغلے یم. د پولیس د خبرولو هېڅ حاجت نشته. اوس هم زما په لاس او پښو کښې دا طاقت شته، چې یو پولیسان مانه شی ګرفتارولی. لیکن ما وے چې قانون به ماته د شریف ژوند تېرولو اجازت راکړی. زما دا خیال و، چې ستاسو قانون به د خدائے تعالے د قانون په شان وی، چې کله مجرم توبه وباسی. نو دوی به نې وبښی. لیکن ماته اوس پته ولږېده. چې ستاسو قانون د خدائے د قانون نه بدل دے، سعیده! زه شریف ژوند غواړم. لیکن ته مې شرافت ته نه پرېږدې، خبردار چې د ټیلیفون لاسته تاو نه کړې، کنه سینه به دې په ګولو غلبېل کړم. ته وګوره اوس هم زما په لاس کښې ډکه تمانچه ده. خو نه به دا وی چې زما سره د قانون لار اونه کړې. بلکې یو مظلوم ورور مې وګنړې او ما معاف کړې. زه به تاسو له ډېر خدمتونه وکړم.

سعید : ستا غوندې سړی نه د خدمت توقع ساتل یا دا

طمع لرل. چې ته به نیك شي غلطه ده اوس ته نه شي تلی. ته د خپل ورور نه بلکې د یو مجرم په حیثیت د یو پولیس انسپکټر په مخکښې ولاړ نې قانون تانه شی معاف کولی. زه یو نوکر یم. دا زما فرض دی چې تا کرفتار کړم. او ښه به دا وی. چې د تیښتې کوشش ونه کړې. بلکې لاس دې زما په لاس کې راکړې. ته به هم د عذاب نه خلاص شې. او زما فرض به هم پوره شی

وحید: خنده رویه غوندې شو، اوښکې نې پاکې کړې او ونې وې واقعی سعیده زه په غلط خیال راغلی وم. زما دې قسم وی. چې کـه زما ذهن پرونـے وے، نـو اوس بـه دې خپل حالت لیدلی وے. چې ددې نوې او خوښې ښځې په خوا کښې لمبېدلې په وینو کښې پروت وے. لیکن نن دې د ورندار په سر معاف کوم. خبردار چې د خپل خانے نه ونه خوزې، کـه رپ دې وکړ، نو خپلې تولې ګولۍ به دې په سینه کښې ونښلوم. زه لاړم او دا واوره چې زه به باقی ژوند په شرافت کښې تېر نه کړم، دا ننئے وخت زما او ستا د عمر د جدائی دے او د نن نه پس واقعی هر خانے چې یوخانے کېږو، نو د مجرم او قانون په حیثیت به یوخانے کېږو. زه هم ګورم چې ستا لاس څومره اوږد دے او زه به خپل عزت وګورم او ته به دا ومنې، چې واقعی د کوم پلار چې ته زوے نې، نو د هغه زه هم زوے یم.

سعید: ښه به دا وی چې خان حواله کړې په دې کښې دې فایده ده.

وحید: ما خپله فایده او نقصان وپېژنده سعیده. د دنیا د

خلقو نه مې طمع ورکه شوه. ما خو وے چې شریف ژوند به تېر کړم. لیکن تاسو مې شرافت ته نه پرېږدئ دا واوره چې هغه بلـه ورخ دې خالص لاس زخمي شوے دےاو اوس چې مې کلـه مخې لـه راغلې. نـو پـه حیثیت د مجرم زه دا خپل فرض ګڼرم. چې د قـانون سر مـات کړم او پـه خپلـو پښـو کښې نې وچقـوم او یـواخې تـه نـه. بلکې د خپـل ټـول خانـان افـراد بـه ختـم کړم. ماتـه پتـه ولګېـده. چې زه چـا پـه بـده اړولے یـم. ماتـه د ګناه دا جـوره کـنـده چـا کېښـتلي ده. زمـا دې قسـم پـه خدائے وی چې زمـا د ګولۍ نه به زما مور او نیا هم بچ نه شي

وحیـد ددې خبرې سره د دېوال سر نه ټوپ کړ او پـه منډه راروان شـو او اوس یـو وار بیـا پـه دې لارې روان شـو خکـه چـا دنیـاوی قـانون هغـه معـاف نـه کړ. هر څو کـه هغـه کوشش وکړ چې شریف شم. لیکن چا شرافت ته پرې نه ښودلو

نېغ پـه نېغـه نې د خپـل کلـی لاره ونیولـه او پـه منـډه منـډه راروان شـو. ګـوری چـې اوس څـه کـوی. عـذرا او سعید وارخطا غونـدې یـو بـل تـه وکتـل. لـیکن څـه کېدے شـو. سعید د راوتلو کـوش وکـړ. چې د وحیـد تعاقـب وکـړی. لـیکن عـذرا نـې ورو غونډې په اوږه لاس کېښوده او غږ نې وکړ

عـذرا : دا څـه کـوې سعیـده دا د تلـو وخـت نـه دے. لـږ وګـوره نیمه شپه ده.

سـعید : پریـږده عـذرا دا زمـا فـرض دی. چې زه خپـل فـرض پـوره کـرم. ده خـو ټـول خلـق تـنـګ کـړی دی، دده دا سـزا هـم زمـا د لاس نه مقرر ده. ما مه نیسه عذرا چې یا دے ختم شي یا زه

عـذرا: اوس دا د خبـرو وخـت نـه دے، خـه کمـرې تـه دننـه شـه، جامې بدلې کړه، خلق اوده دی هسې نه چې نور زوړ جوړ شي.

سـعيد غلـے شـو او مخکښـې ددې نـه چې د عـذرا خبـره ومنـي او کمـرې تـه دننـه شـي، قبـاد خـان د خـپلې کمـرې نـه او ګلـون د خپلې کمرې نه رابهر شول په يو آواز ئې تپوسونه وکړل:

قباد: څه چل دے سعيده څوك دے؟

ګلون: څه واقعه وشوه عذرا څه شور دے؟

سـعيد: هيـڅ شـور نشـته ماماجی! وحيـد راغلے و، زمـا نـه ئې معافی غوښتله، چې ما معاف که.

ګلـون: نـو تـا بـه حصـار کـړے و کنـه، د وحيـد نـه قربـان شـم، وړے تـږے لاړو، هنـے خدايـه توبـه مـې دې وی، داسـې بـد دې وکـړه سعيده

قبـاد: واقعـی بچيـه تـا بـد وکـړه، هغـه سـتا ورور دے، غريـب شـوے دے، څـه دولـت تـه بـه ئـې ضـرورت و، تـا بـه ماتـه ونيلـی وو کنه!

سـعيد: نـه ماماجی دولـت تـه ئـې ضـرورت نـه و، بلکـې دا ئـې غوښتلـه چـې مـا د قـانون نـه آزاد کـه او دا ماتـه ګرانـه ده، يـو قاتل او غـل سـړے چې خلق ئې ازار کړی دی، هغه قـانون نـه شـي معاف کولے، ترڅو چې ئې ورله سزا نه وی ورکړې.

سـعيد خپـل بيـان جـاری سـاتلے دے، ناڅاپـه د ور ډب شـو آواز وشـو، چـې کونجيـانې راکـړئ چې ور بيرتـه کـړو. قبـاد خـان زر منـډه کـړه، چې څـه چـل وشـو، ور ئـې بېرتـه کـړ، څـه ګـوری چې

نازو پنډوکې په سر رادننه شوه

نازو: خان السلام عليکم! ګلونو بی بی جوړه ده؟

قباد: څه کوې نازو په دې وخت. خواره نه شې ډېر ناوخته نه دے.

نازو: نورې خبرې به دننه کېږی، خو شکر دے چې راغلم.

قباد: ګلون په ګلون نازو راغله (په خندا غوندې) ولې داسې په منډه راغلې ده لکه چې مور آبی راخغلولې وی.

نازو: بی بی السلام عليکم! زما سلام دے. ته جوړه نې بنه جوړه نې.

ګلون: راشه چې بنکل دې کړم. داسې ورکه شوې وې ما وے جوړے مړه ده. بنه ده چې ژوندئ نې، مور آبی بنه ده؟

نازو: ته هم داسې تپوسونه کوې، چې خدائے توبه مې دې وی، ستا څه حق دے چې د مورآبی تپوس کولو خدائے دې هغه ورکه کړی. ظالمه.

ګلون: د ميشتې خلق خواږه وی نازو! مورآبی که ډېره ناکاره ده، خو بيا هم مشره ده. مشران خو د قارغانو بنه وی نازو، راخه راخه کېنه، تا خو به ډوډئ هم نه وی خوړلې.

نازو: هر څه به وشی، خو سعيد خان کوم خانې دے. چې بنکل نې کړم. هغې توبه مې دې وی دا پوليس دلته څوک ولاړ دے خير خو دے؟

ددې خبرې سره ټول په خندا شول. ګلون د نازو په اوږه لاس کېښوده او ورته نې ووې ورشه دا پوليس بنکل کړه. دا ستا

قلار کړے سعید دے نازو رامنډه کړه او په پرق پرق ئې سعید ښکل کړ، سعید هم لکه د خپل زوے ور تر غاړه وتو.

**سعید**: ترور جوړه ئې، ښه ده چې راغلې، ته نیکه ښځه ئې. تاله دلته راتلل پکار وو. زه حېران یم، چې دا دومره عمر دې هلته څنګ تېر کړ؟

**نازو**: ستا د سترګو نه زار شم، داسې ژوند مې تېر کړ لکه په تناره کښې.

**ګلون**: ورشه عذرا که ډوډي وی، نو انګولے تود کړه. نازو به ډوډۍ نه وی خوړلې.

**عذرا**: شه ترور بی بی هنے دے توده وم ترور ته کښېنه پخیر راغلې

نازو ګلون ته وکتل او په سترګو کښې ئې تپوس وکړ. چې دا څوک ده؟

**ګلون**: دا عذرا ده، زما ورېره اوس دا دسعید ښځه ده. ستا اینګور ده. نازو رادوکړه او عذرا یې د سر نه د پښو پورې تولـه ښکـل کـړه. ستا نه قربان شم. داسې خوږې او ښکلې سترګې دې دی. اوس مې سترګې وغړېدې. دا خو د جنت په شان کور دے، ما خو په ګور کښې مېشته کړې ده، خدایه لویې رحم دې وکړ، چې د کونجاره دې راوښکلم.

**عذرا**: راځه ترور ډوډۍ تیاره ده وخوره.

نازو ډوډۍ وخوره، سعید کپړې بدلې کړې. قباد خان خپلې کمرې ته لاړو. نازو او ګلون په یوه کمره کښې

څملاستې

قباد خان ووې ناوخته دے اوس څئ ټول خپلو خپلو کټونو ته، که خير وی نو سبا به ګپ‌ږی ټول ددې خبرې سره خپلو ځايونو ته لاړل او يو وار بيا په کور کښې د ماسختن هغه تياره او خاموشی خوره شوه.



# خوابښې اینګور

تـول خلـق وارخطـا دی. هـر خانـې هنـر زوږ دے. چـې څـه بـه کېـږی. خکـه چـې وحيـد د ډېـرو ورخـو راسـې د کلـی نـه غاېـب دے. د پولیسـو ګشـتونه ګرخی راګرخی، د بچی بچی پـه خـولې، بغيـر د وحيـد نـه بـل نـوم نشـته دےاو آخـر د دې ټولـو واقعـاتو ډب مـور آبـې او نګهـت تـه راورسـېده. اوس دوی هـم پـه خـان پـوه شـوې چـې څـه بـه کېـږی. مورآبـې کـوز سـترګې غونـدې لـرې ناسـته ده او نګهـت خـان لـه پـه خولـو کنبـې ډوبـه پـه سـوچ کنبـې ده، چـې څـه وو او څـه راوشـو؟. مورآبـې پـه غمګـين اواز کنبـې ووې:

مورآبـې: وګـوره تـه جينـۍ دے خپـل زوے تـه چـې خـان نـې لېونـے کـړے دے، خپـل پـردی تـه نـه ګـوری. د پـلار مـال دولـت، د

خاندان عزت او هرڅه ني تباه کړل. هغه غريب په هسپتال کښي دے او دولت ني ده تول په ډمانو خلاص کړ. بنه ده کنه که زما زوے راغے او ما ورته دا هرڅه ونه وې، نو ګورو به. دا تاسو څه ملنډه رااخيستي ده. هډو خان پېژنئ نه. مور او زوی داسې شرم جوړ کړے دے چې...

نکهت: ستا خو زوے دے رابه شي او زما خاوند دے. کومه خبره چې ته ويل غواړې دا هرڅه زما په زړه دی، زه هم وايم چې دا هرڅه خو تا خراب کړل. د خدائے دپاره دې خپل لېورزے بې ګناه په ما مړ کړ. د مال دولت حرص رااخيستلے وې، مېراث دې خپل کړ. ولې په لاس دې خاورې هم رانغلې. يو دې پکښي زوے مړ شو او اينګور دې سره د زوی د کور نه وشړله، په دې شرم هم ونه شرمېدلې. ته وايه چې ګنهګاره ته نې که زه يم؟ ټول قصور خو ستا دے ماته څه ګناه ده.

مورآبي: هرڅه چې کېږی اوس راپېښه ده، خو ستا په شان ناکاره ښځه مې نه ده ليدلې. ګلون غريبه دې په ستړګو کښي لکه د ازغی رقېبده. هډو زغملې دې نه شوه. هغه دې ماته توره بلا کړه او په زور مې د کور نه وشړله. خو چې خپل قابليت پکښي و، نو وګوره زوے نې څومره لوني سړے جوړ شو او هغه ستا قابل زوے لاړو په غلاګانو او ډاکو سر شو اوس نې دې ته ګوره چې کور ته نه راځي. د خلقو نه پټېږی د پټېدو څه حاجت دے، د پلار مخې له به نه راځی څه. لوني سړے دے د کور د ورانی ودانی ورسره بالکل فکر نشته. په پټېدو چرته کار کېږی.

نګهت: مورآبي اوس د پلار مخه کارداري يا بيکاري دا هرڅه پرهېږده، توکلے لاړې خولې له ببرته نه راخي. په ما څه کوي او زما په زوي، اخري وخت دے خپل غور کوه. چې خان وساتي. نو پوره کار به وکړي او پاتې دا خبره چې ګناه ماته ده. هر وخت يې راته په نوري ږدي. نو په دې هر څوك پوهه دي. چې ته څنګه ښخه نې. تا هر څوك پېژني د خپل اولاد دشمنه مور په دنيا کښې يواخې ته نې. ما چرته بل څوك نه دي ليدلي ستا نه ټول خلق خبر دي. زما څه وييلو ته به ضرورت پاتې نه شي. د دنيا خلق ټول خبر دي

دوی په دې مذکور کښې لګيا دي. يو په بل ورانه پرانه اړوي. هلته نوري خوابې اينګور مشغوليږي. ګلون رامخ کړ او عذرا ته ني د ميني ډك اواز وکړ

ګلون: بچنے عذرا بچي! ته لږ ماته وګوره سحر راسي داسي په زور سوچ کښې نې چې دا ولې؟ ستا د سترګو نه قربان شم خفه کېږه مه داسي کېږي. دا واقعات په خوانانو داسي راځي. هلکان پيدا دداسي سختو دپاره دي. وخاندہ په کار نګيا شه. د کور کار کول هم غواړي کنه

عذرا: په دې نه يم خفه چې څه به کېږي. ولې بېګاه چې وحيد د غلو په شان راغے. ترور بی بی نو زړه مې پرې داسي خوږ شو. لکه چې خپل ورور سرے په ناکاره کار ووينی

ګلون: د قسمت خبره ده بچي. که ما په موقعه ليدلے وے. نو انشاء الله تعالى تلے به رانه نه واي. زما زوے و. ما به

خامخا حصار کړے و.

عـذرا: سعيد خو ورتـه داسـې قـار و، چـې ناآشـنا مـا وے زه ورتـه وايـم چـې مېلمـه دے، معـافي غوښتلو لـه راغلے دے. پرېږده چې لږ په ساه شي. خو زړه مې ونه کړے شو.

گلون: بد هم دغه وشو، چې تا ماته آواز کړے وے نو...

نـازو: ددې څـه کـار و، چـې تاتـه بـه نـې اواز کولـو، هغـه شـان ددې پردو ډنـډو ختـو نـه خـان نـه وباسـې. لا ستا پـه سـر کښـې د هغـه دنيـا پرهرونـه اوس هـم دي، مـالوچ دې پـرې تـړلې دي او وحيـد مورآبـې او نگهـت دې د سترگو نـه، نـه وخـې. توبـه مـې دې وى، داسـې تـه پـه زړه کلکـه ښخـه نـې. عـذرا دا بـه لگيـا وى، ددې په خبرو پسـې مـه ځه. دا هـډو خپل پردے پېژنـى نـه پـه خپل خان او پـه سعيد او پـه مـا نـې داسـې سختـې تيـرې کـړې دى، چـې نـا آشـنا پـه مخـه بـه لگيـا وه چې ناکام کـوئ کنـه. د مـور آبـې او د نگهـت څـه مجـال و، چـې مونـږ تـه بـه نـې پـه کـوزو سـترگو کتلـى وے

عـذرا: بنـه ده تـرور چـې تـه راغلـې. زمـا سـره خـو سـعيد ددې حـال ونيلـو وعـده کـړې وه، چـې زه بـه درتـه راز وايـم. خـو هغـه داسـې پـه لانجـو اختـه شـوے دے، چې اوس نـې ماته فکر نـه راخى او زه ورتـه ونيلے نـه شـم. دا څـه چـل و، چـې دوى نـې داسـې بـدې شول.

گلـون: پرېـږده نـازو! دا وړه جينـئ ده، ددې د داسـې کـارونو سـره څـه کـار دے. څـه ورشـه د ... ت سره څـه کـار وکـړه عـاجزه

داسې سترې شوه، شپه او ورځ د تول کور کار کوي. سحر وختي پاڅي او د نيمې شپې پورې کار کوي لګيا وي

عذرا: کېنه ترور لږه ماته خبره وکړه، بيا به خپ ستا برخه کار به زه وکړم.

نازو: کار به هم وکړم او تاته به حال هم ووايم.

نازو د کريم خان د مرګ قصه بيان کړه د الف نه تر ي پورې حال نې ووايه د ګلون کربوان د اوښکو لوند شو. نازو په هتکو شوه او عذرا داسې غريو ونيوله. لکه چې څه نوے ماتم شي. په ژړغوني اواز عذرا وويې:

عذرا: ترور واقعي دا خو ډېر ظلم شوے دے. ددې ظلم بدله خو مورآبي او د نګهت نه خامخا اخيستل په کار دي. که زه سړے وے او پوليس وے. نو ما به بغير د څه تپوس نه دوی وژلي وے. بيا هرڅه چې کېده.

نازو: نو ته خو اوس سعيد ته ګورېدې چې بد نې وکړل، چې وحيد نې بغير د مېلمستيا نه پرېښودلو.

عذرا: خير وحيد خو بې ګناه ښکاري، دا خو مور او نيا نازبين عادت کړے دے. خکه اوس دا خراب کارونه کوي، کنه معصوم په دې څه پوهېږي، ورو ته خو چې دې ښکلا لاړ وېښودله. هم هغه سن حي او هغه زده کوي.

ګلون: بس کړئ اوس دا خبرې پرېږدئ. عذرا! د سعيد خوږ شوے لاس بېګاه ښکه و، ما خو بالکل تپوس ونه کړ. قربان داسې ناجوړه بيا تانړې ته لاړو.

نازو: ولې لاس نې په څه خوږ شوے و.

عـذرا تـه نـه نې خبر تـرور وحيـد ورلـه پـه تمانچـه وېشتے دے. خو بچ دے.

تـرور: وئ خدايـه دا د سپی زوے پـه سترګو ړونـد کـړه. زه څـه خبـر وم کنـه د شـپاله خـوا تـه بـه تـرې هـلـو پتـه شـوے نـه وم. د ګرېوان نـه بـه مـې نيولے و او پـه مـخ بـه مـې ورلـه يـو څـو ګذارونـه ورکړی وو

عذرا: ولې ترور ته وحيد ليدې وې څه؟

نـازو: او کنـه چـې زه راتښتېـدم. نـو پـه منـډه زمـا نـه مخکښـې شـو، مـا وے جـوړې پـه مـا راپسـې دے. څـه خبـر وم چـې هغـه ميرات مړے دلته راغلے و.

ګلـون: دا تـولې د ماشـومانو خبـرې دی. کـه سـعيد زخمـی شـو نـو څـه خبـره ده، دا د سـعيد فـرض دی او خپـل فـرض پـوره کـول د هلکـانو زلمـو سـره خونـد کـوی، زخـم هـم دومـره ژور نـه دے. لاس نـې روغ دے او بـل دا چـې دا د هغـه ايمـان او غيـرت دے چې خپله نوکری په ايماندارئ سره کوی.

عـذرا: تـروری بـی بـی خفـه پـه دې يـم چـې دا څـه يـوه ورځ نـه ده اوس دا هغـــه عمـــر دے. دا پـــردئ نـــوکری دې ميراتـــه ش ببکالـه نـې ټولـه پـه رونـړه کـړې ده، پـه کـټ کښـې ډډې پـه ډډې شـو او وے بـه نـې عـذرا لاس مـې ډېـر درد کـوی. او بيـا تـانړې لـه تلے دے. نـن ګـورې چـې څـه کـوی. زمـا خـو خيـال دے، چې جوړې نـن بيـا د غلـو پـه تـلاش کښـې دے. خدائے دې خيـر کـړی چـې څـه بـه

کېږي، خلق وانې داسې ناکاره غلـه دي، خدائے دې دا غلـه میرات کړي.

**کلـون:** غلـه نـه دي بچے یـو غـل دے، وحیـد دے. زمـا خیـال دے، سـعید نـې لحـاظ کوي او بـل د هغـه غلاګـانې کامیـابي پـه دې دي، چـې د کـور کلـي سـرے دے لاړي کـوځې ورتـه معلـومې دي. نـو غـلا څـه داسـې ګـران کـار دے، خـو زړه مـې نـن رپـېږي خـدائے دې خیـر کـړي د هلـك لاس هـم خـوږ دے او کـار هـم ګـران دے.

**عـذرا:** مـا خـو وے جـوړې زمـا وارخطـا دے، خـو تـه زمـا نـه ډېـره وارخطـا نـې، هـلـو زړه مـه خـوره. تـرور د خـدائے پـه شـوي تقـدیر بـه صـبر کـوو. خوشـحاله پـه دې يـم، چـې سـعید زمـا د محبت نـه زيـات پـه خپلـو فرضـو مـنـين دے. زمـا دا یقـین دے چـې خپله نوکري هغه ته د خپل هرڅه نه بنه ښکاري.

**ګلـون:** دا د یـو پښتـون بچـي فـرض دي لـوري. چـې څـه کـوي. نو ښه په غېرت دې کوي، په دهوکو شوکو کار نه کېږي.

سـعید نـن بيـا د وحیـد پـه تـلاش کښـې راروان دے، پـولیس ورسره دي. نـن د هغـه دا خیـال دے، چـې ایسـته ایسـته ګرځـېدل فصـول دي، بلـه چـاره نـه شـته سـیوا ددې نـه چـې د خپـل کـور نـه ګېره چاپېره کـرم. کېـدے شـي چـې دے چرتـه راشـي نـو خامخـا بـه ګرفتـار شـي او بـل دا چـې ونيلـي نـې هـم دي چـې د خپـل خانـدان یـو فـرد نـه پرېـږدم. وحیـد چـې د ګلـي، خبـرې او ګلنـار پـه مـرګ لاسـونه ولـړل. بیـا د سـعید خـنـګ تـه لاړو، لـیکن د هغـه نـه هـم نااميـده او مـخ تـورن راواپـس شـو، بالکـل د دنیـا نـه نـې زړه تـور

شو. اوس د هغه خیالات بالکل ګنده شول او دا تلوسه نې په زړه کښې شوه چې په دې دنیا کښې ټولو خلقو ماته غلطه لاړ ښودلې ده او هر هغه څوك د خپلې لارې نه اخوا کړم. چې ما ته نې ضرر رسولے دے هسې نه چې نورو خلقو ته ترې نقصان پېښ شي ده په زړه کښې ووې. چې سل په لالى پورې دا يوه پرې د بنګړو خپله تمانچه نې ډکه کړه. ملا نې وتړله مخ يې پټ کړ او په تیاره کښې نې د خپل کلي مخه ونیوه. څه شبه پس خپل کور ته راورسید. غوږ نې کېښودو. مور او نیا نې په مذکور دی او په جنګ دی وانې چې تاته ګناه ده او نګهت وانې چې تاته ګناه ده.

د ښځو د آواز سره دوی دواړه غلي شوې او په يو آواز نې ووې څوك نې؟ زمونږ کره هيڅ نشته، غله وروره ددې خايه به څه ويسې. لاړ شه چرته مالدار څوك وګوره.

وحيد: دلته چې زه څه وړلو له راغلى يم، هغه به ماته په لاس راشي.

مورآبى: هائے ستا د سترګو نه زار شم. دا ته نې مونږ دې داسې وارخطا کړو، چې ناآشنا ما وے چې دا څوك دے؟

نګهت: هله بچيه راشه، چې سترګې دې بنکل کړم. ډېرې ورځې مې نه وې ليدلے نامرده داسې په خوشو سر شوے نې. کله ناکله خو کور ته راځه کنه.

وحيد: خبردار چې رامخکښې نه شۍ په خپل خپل ځائے ودرېږئ، زه نه ستا نوسے يم او نه ستا زوے يم. يو غل او ډاکو

یم، ستاسو کره راغلے یم موراپی ستا نوسے مړ دے او یو د د
کور نه شړلے دے او بل ډاکو شوے دے ستا خوبن زوے په
هسپتال کښې دے او خوبنه اینګور دې په خوا کښې ولاړه ده.
دا ستا ډېره خوبنه ده کنه؟

مور ابی: ته څه لېونے شوے نې که دا څه کډې وډې
وانې؟

وحید: زه د هر څه نه خبر یم نیا! اوس زما نه خبرې مه
پټوه، ماته دا هم پته ده، چې تا خپل لېورزے د دولت د پاره
وژلے دے او په څه دې وژلے دے زهر دې ورله ورکړي وو کنه؟
جانیداد دې خپلو زامنو له جمع کړ. هغه معصوم دې مړ کړ.
خپله مشره اینګور دې صرف په دې بدې شوه، چې هغې په
دې ګناه کښې ستا ملګرتیا نه کوله، د هغې څه انجام شو.
شاید چې ته به ترې خبر نې، زما مور دې په دې خوبنه وه، چې
دې ستا ملګرتیا وکړه او ستا راز نې پټ وساته او دومره ته
ددې دلاس نه مجبوره وې بیا چې یو زوے نې درله مړ کړ او د
بل زوے بنخه دې کړه. اوس وواېه چې نور څه کول غواړې؟

مورآبی: لېونے کېږه مه دا هرڅه دروغ دی، که چا درته
ویلی وی، نو منه یې مه، دا ټول دروغ دی وحیده! ټول دروغ
دی.

وحید: مورآبی د رشتیاو وخت دے، دا خیال دې غلط
دے، چې نن ستا مخ ته ستا نازبین نوسے ولاړ دے، زه ستا
نازبین په دې وجه وم، چې زما مور ستا رازونه پټ ساتل، خو

اوس وواېه چې ستا هغه خوږه مشر زوی څه شو او هغه نازبين نوسے چې زما د وجې به تا سعيد له ډوډۍ نه ورکوله آخر دومره ظلم ته څه ضرورت و. ددې ظلمونو ستا څه سزا ده، په زوره وواېه. ته مجرمه نې کنه؟

ددې خبرې ختمولو سره وحيد تمانچه سسته کړه او ډز شو. چې مورآبۍ نې په سينه ووېشتله او په وينو کښې لړلې د غولۍ په مېنځ کښې ارتاوه شوه.

وحيد: اوس مې ارمان پوره شو. ما وے چې ستا وينې به وڅکم، خکه چې دا غلطې لاړې تېولې تا جوړې کړې وې، افسوس زه ستا ددې واقعاتو نه مخکښې خبر وے. نو څومره ښه به وه.

مورآبۍ لاړه، ساه نې ورکړه، د وحيد خپلې مور ته مخه شوه، چې ددې کار هم ختم کړم. ليکن نګهت ورنه مخکښې په اندرېانې کوټې ته وختله او د تېښتې په نيت نې د کوټې د چنې نه ټوپ کړ، يو متل دے چې مرګ وينې نو تبې ته رضاى شي. دنګه کوټه وه د وارخطائۍ وخت و. نګهت ورانه ورانه د کوټې زاروانه شوه او درز شو چې سر نې مخکښې او پښې نې دپاسه ولګېده. سعيد راپه منډه شو. خکه چې يو ډز وشو او بيا د کوټې د طرفه درب شو. چې دے راغے. نو څه ګورى چې نګهت مړه پرته ده. مازغه نې بهر راوتلى و. خکه چې په يو کانړي نې سر لږېدلے و، دے حېران شو. چې دا هر څه څنګه وشو؟ زر زر نې پولسو ته حکم وکړ، چاپېره شئ د کور نه. زما خيال دے وحيد راغلے دے. پوليس زر زر د کور نه تاو شول.

سعید کوټې ته راوختلو، په بلې نې سر راښکته کړ، مورآبې نې په غولی کښې مړه ولیده. اوس خو نې ښه یقین وشو، چې وحید دلته دے، دے لږ یا دے د بلنے کوټې ته کوری چې لاندې درب وشو او د چا د ټوپ اواز راغے. ده ورمنډه کړه او د بلې سر له راغلے. څه کوری چې وحید د میښ په کوڅه روان دے. لیکن سعید پرې آواز وکړ

سعید: ودرېږه بزدله هرڅه دې وران کړل، نور په تېښته نه خلاصېږې. ښه به دا وی چې خان قانون ته حواله کړې

وحید په منډه کښې راستون شو او دا نې وونیل.

وحید: تېښتېدلے مارغه د چا په لاس ورغلے دے سعیده ته مشر نې خو کم عقل نې، زما مثال اوس د هوا دے، هوا څوک نیولے شی. هغه بله ورځ مې وژلې نه. کنه مرګ دې راته ګران نه و خپل پرهر دې هېر دے، لاخو دې لاس هغسې په غاړه کښې پروت دے.

سعید: د خبرو وخت نه دے، بحیثیت د یو انسپکټر نه بلکې د یو ورور درته وایم، خان قانون ته حواله کړه. قانون د چا سره ظلم نه کوی. کېدے شی چې ته صفائی پېش کړې او بچ شې.

وحید: ستا لاس آزاد دے، هرڅه کولے شې. ته د قانون غلام نې او زه یو آزاد سړے یم. که ما د چا غلامی کولے، نو دا حال به مې نه و. اوس هرڅه چې کېږی د قانون په لاس کښې خان نه ورکوم، لاړم بیا به ګورو.

ددې خبرې سره وحيد بيا منډه کړه ليکن اوس دده مقابل
سعيد نه دے، بلکې يو پوليس انسپکټر دے. دا د هغه فرض
وو چې دے گرفتار کړے وے. بله چاره نه وه. سعيد تمانچه
راتاوه کړه، وحيد نې رسا په سينه کښې وويشتلو. سره د ډزه
وحيد تار تار مې په زمکه ارتاو شو او تمانچه نې د لاس نه
ارتاوه شوه، چغه نې د خولې نه وختله.

**وحيد**: بد دې وکړه سعيده! که زه خبر وے، نو ته به زما نه
ژوندے نه وے تلے، خو افسوس چې ما سستې وکړه.

**سعيد** پوليسو ته ووې، تادى کوئ مرى هم راواخلئ او
وحيد هم گرفتار کړئ.

پوليسانو د حکم تعميل وکړ، نيمه شپه وه. دوى تانړې ته
راورسېدل، ډي. ايس پى او نور لوى لوى افسران هم په دې
حشر کښې راغونډ شول. خلق ډېر خفه شول، چې دا څه وشولو
د يو لوئې خاندان دومره بې عزتى او شرم وشو او په يوخانے
تباه شول وحيد زخمى په هتکړو کښې پروت دے.

ډى۔ ايس۔ پى صاحب حکم وکړ، تادى کوئ د وحيد نه
بيان واخلئ، ليکن سعيد ببرته په گوټ کښې ولاړ دے، په مخ
نې د اوښکو باران جوړ دے.

**ډى ـ ايس ـ پى**: وايه کنه غله څه بيان ورکوې، څه وې
کنه؟

**وحيد**: څه به ووايم، ورور مې راله راوله.

ډى ايس بى حېران غوندې شو ورور دې؟

ـ وحید: او او جی ورو مې.

سعید رامنډه کړه او د وحید په خوا کېنې کېناستلو. په مخ نې د اوښکو سیند روان دے، ځکه چې مړه مور، مړه نیا او مړ کېدونکې ورور دا هرڅه دده په مخکښې وشول او ده لیدل، لیکن څه به نې کړے وے. د قانون غلام و، دا د ده فرض وو. سعید ووې وایه بیان زر ورکړه، چې هسپتال ته دې ورسوو.

وحید: خوږه وروره اوس د هسپتال ضرورت نه دے پاتې. آخری وخت مې دے. صرف دا خواست درنه کوم، چې د خپلې مور نه به زما دپاره معافی وغواړې. دلته هغې ته سترګې نه اوچتولے، ډېر بد مو ورسره کړی دی. ستا نه هم معافی غواړم، ما معاف کړه، ماته په خپل ژوند نه نې پوه کړے، خو ښه ده چې د دغې ماحول نه راوتلے وے، کنه ته به هم زما په شان شوے وے. اوس راسره وعده وکړه، چې دا تېر شوی هرڅه هېر کړې او ما معاف کړې، چې ساه مې په قلاره لاړه شی.

سعید: (ژړغونی غوندې) ګرانه وروره زه څه ووایم، معافی خو به زه ستا نه غواړم، ته وګوره ما د خپله لاسه ته زخمی کړې او دا دے د مرګ په لور روان نې، لیکن ته هډو په خیال کښې مه راوله، چې ته خپل ورور وېشتلے نې، بلکې یو پولیس انسپکټر وېشتلے نې، ځکه چې دا زما فرض او حق و. ماته بښنه وکړه، ما معاف کړه، مور ته به زه ووایم، هغه به تاته دعا وکړی، خو ماته افسوس دے، چې دا خیالات ستا څه لږې ورځې مخکښې راغلے وے، نه د خاندان د عزت محافظ وې، لیکن دا به قدرت ته منظوره نه وه، خیر اوس هرڅه چې

وو هغه وشو. خو دا خواست کوم چې ما معاف کړه.
وحید: ته هم ما معاف کړه وروره!
او ددې خبرې سره د وحید ساه لاړه. سعید تر ې په خپل لاس هتکړئ وسپرد لې. خلقو د دوی جنازې اوتې کړې او دا پروګرام شو، چې سبا به ئې خاورو ته سپارو. خلق خوربدونکی وو. چې یو سړے راغے، هلکه څه ګرمه ګورمه ده. سعید خو به دلته نه وی. په سعید دا آواز آشنا غوندې ولګېده او رابهر شو، چې ونې کتل، نو خپل پلار ئې ولیده. رامنډه ئې کړه او ور تر غاړې وتلو. اشرف خان هسې هم بوډا شوے و او څه مرض بنه کمزورے کړے و، بیا د وحید ناکړئ ئې اوربدلې وې، نو نور هم کمزورے شوے و. سعید ئې ولیده، نو په کوزو سترګو او شرمېدونکی زړه ورته ور تر غاړه وتو. ډېر وخت ئې یو بل په خوا پورې نیولی وو. سعید غریو نیولے و، خبرې ئې نه شوې کولے. اشرف خان تپوس وکړ:

اشرف: سعیده بچیه! څه چل دے، ولې ژاړې او دا ګنره ګوره د څه ده؟ ماته خو ډاکټر اکرام ستا پوره پوره حال ونیلے دے، خبر شوے یم چې ته یو غټ افسر جوړ شوے ئې، راته ئې ووې چې څه کور ته لاړ شه، دوی ستا انتظار کوی. د هغه په وینا دېخوا راغلے یم، مور دې کوم خاے ده.

سعید: (ژړغونی غوندې) دا جی بنه دې وکړه، چې راغلې خو لږ وروستو راغلې. وخت دې ضایع کړ. بنه شوه چې راغلې ابی کور ده خو...

اشرف: نو نور څه ماته ووايه کنه د زړا څه خبره ده.

سعيد ورته په زړا زړا کښې هرڅه بيان کړل. اشرف خان هم په زوره زوره وژړل او په خپل قسمت نې افسوس وکړ او د خاندان په بې عزتۍ نې ډېر خفګان ښکاره کړ. د خپلې مور، وحيد او نګهت لاشونه نې وليدل. قباد خان راغې او د اشرف خان سره ور تر غاړه وتو.

قباد: خفه کېږه مه خانه! هر هغه څه کېږي، چې خدائې ته منظوره وي. د تقدير په کارونو صبر پکار وي. کنه دا د چا خوښه وي. چې د هغه په کور دې تالان جوړ شي او قهر دې پرې نازل شي، ستا په کور خو د خدائې قهر نازل شوے دے خو ښه شوه هر چاته د خپل عمل سزا ورکړے شوه، څه چې خو.

اشرف: چرته خو؟ ځنګ به لاړ شم، ګلون ته به څه وايم؟

قباد: ګلون هغه ښځه نه ده، کوم چې ستا خيال دے. هغه زما خور ده زما. او بل دا چې په کومو سترګو به کلی ته لاړ شې. هلته به په کوزو سترګو ځنګه ګذاره کوې. اوس هرڅه چې دی، خو دلته دې ګذاره ده، هلته دې جائيداد ټول ختم دے. کور کلے دې ګانړه دی. مور او زوے دې مړه شول اوس دې دا کور دے او دا دې زوے دے او زه دې ورور يم. د دوی خپله ګذاره هم ښه ده او انشاء الله تعالی ستا به ورسره هم کېږي.

دوی ښه په جوړه جاړه د تانړې نه کور ته راغلل. عذرا، مور نې او ګلون نې په چغو چغو وژړل، چې خدايه دا دې څه وکړل. په ټوله کورمه دې تندر راخلاص کړ. قباد خان سره د سعيد او

اشرف خان راغل. ګلون زر پاڅېده او سلام ئې وکړ. خانه پخير راغلې ته کله راغلې عذرا هم سلام وکړ.

اشرف: اوس راغلم ګلون. هر څه مې په خپلو سترګو وليدل، خو ستا نه معافي غوارم، ما معاف کړه.

ګلون: خانه! زه ستا د پښتو خاورې يم. د خاوند نوم د خدائے تعالے دے، ماته معافي وکړه، ما به ستا دپاره څه نه و کړې، کنه ته به زما نه خوشحاله نه وے څه، زه د خپلو غلطيانو معافي غوارم.

اشرف: ګلون نور مې مه شرموه. کوز سترګے کوه مې مه دا راته ووايه، چې دا جينۍ څوك ده.

ګلون: دا دې اينګور ده، د قباد خان لور ده.

عذرا رامخکښې شوه سلام ئې وکړ، او د سخر په پښو پرېوتله. شپه تېره شوه، سحر شو، پوليسانو په سرکاري طور ددې جنازې وسپارلې. ټولو خلقو قباد خان له د عذر دپاره د خفګان تلل راتلل وکړل. ګلون ته هم ډېرو ښځو د افسوس اظهار وکړ. وے چې د خدائے کار دے، چې څه ئې خوښه وي، نو هم هغه کېږي. که د بنده په رضا کېدے، نو سعيد او ګلون به هډو ژوندي نه وو.

شپې ورځې تېرې شوې، غم لاړه خور شو، د خلقو تلل راتلل ختم شول. اوس اشرف خان د خپل زوے، ښځې او اينګور سره ښه د خوشحالۍ ژوند تېروي. ټول زاړه واقعات هېر شوي دي او يوه نوې کورنۍ جوړه شوې ده. نازو ګرمه

ګرمه ګرځي راګرځي. کله يو کار ته منډه کړي او کله بل ته.ګلون په تخته پوش ناسته ده، تلاوت کوی او عذرا لګيا ده د کور کار کښي مشغوله ده. ناڅاپه څوك راغي غږ ني وکړ اکرام خان راغي. عذرا زر کار بس کړ، ورمنډه ني کړه، لالاجي پخير راغلي، اوس راغلي راکړه دا لاس چي ښکل ني کړم. عذرا په پړق پړق د ورور لاس ښکل کړ.

اکرام: اوس راغلم عذرا په دې ساعت. دا بوډا څوك دے او دغه زنانه څوك ده.

عذرا: دا خو داجي دے د سعيد پلار دے. ودې نه پيژنده څه او دا بله نازو ترور ده، هغه ښځه ده چي سعيد ني په ورکوالی قلار کړے دے، د سعيد رضائی مور ده لالاجي!

اکرام: اوهو کاکا جي ما خو هډو ونه پيژندې، معافي غواړم زما سلام دے.

اشرف: بچيه! تاته ګناه نشته، اوس مي ږيره لويه شوې ده، ستا سره چي په هسپتال کي وم، نو ږيره مي نه وه، ځکه ته خطا شوې.

اکرام: (په خندا) اوجی همدا وجه ده. ترور بی بی سعيد څه شو؟

ګلون: بچيه! ستا نه قربان شم، د سعيد څه عمر دے، ټول په منډو ترړو تېر شو. هغه دے راغې.

اکرام او سعيد يو بل ته ورتر غاړه وتل.

قباد خان راغې. اکرام ورته سلام وکړ، هغه تري هم تپوس

وکړ:

قباد: اکرامه اوس راغلې که؟ زه نه وم چرته پټې له تلے وم،
مور دې څه شوه؟

اکرام: او بابا اوس راغلم، تاسو په حجره کښېږ وئ. نو
نېغ کور ته راغلم. مور مې په باورجي خانه کښې ده، زما په
خيال څه کار کوی.

قباد: عذرا بچې! اوس دې د مور سره کار کوه کنه. هغه
هسې هم کمزورې ده، څه پرې کار ډېر شی، نو بيا خو به ډېره
ګرانه شی.

سعيد: دې ته د کار مه وايه ماماجی! د خان سرې لور
ده، کار څه کوی، داسې خرابه هوا رالوتلې ده، چې اوس خلق
هډو خپل خان پېژنی نه. کنه وګورئ تاسو بی بی او نازو ترور
په کار کولو مصروف دی.

عذرا قار غوندې شوه، ډېر بنه وشو چې کار نه کوم. په تا
هډو نيکی بنکاره نه ده، درسته ورځ او شپه دې مېلمانه
راځي او کار ورله کوم.

اکرام او سعيد يو بل ته سترګه ووهله، چې عذرا مو ځنګه
قار کړه.

سعيد: دومره غوسه کېږې ولې نامردې، څه د قار خبره
خو نه ده. بنه بنه اوس رایاد شول، ما ستا سره وعده کړې وه،
چې زه به درته يو حال وايم کنه. اوس به درته ووايم.

عذرا: بس بس مهربانی هغه شته حالونه چې دې ونيلی

دی، هغــه پــوره دی، تــا خــو زمــا نــه خبـره پتـه ســاتله، ولــي نــازو ترور راته ټوله قصه بيان کړې ده بنه.

سـعيد : وئ تـرور پـه تـا دومـره تـادی وه، چـې دې خبـرې سـره تولـو پـه پـرق پـرق وخنـدل او تـول سـره کېناسـتل، چـې د يـو بـل د تېر شوو حالاتو او واقعاتو حال معلوم کړی.

